دپښتو ټولنې دخپرونو

پرله پسې نمبر : (۱۹۳)




# دحمید

# نیرنگ عشق



## پښتو ټولنه

### دادبیا تو دڅانگی لهخوا

چونکابش ۱۳۴۹ ش:

دچاپ شمېر : ۸۰۰

# سریزه

څه رنګه چه دپښتو په ادبي نړۍکښې حمید مومند دلوی نوم خاوند او زیات شهرت لري ، دغسې دده‌په‌آثارو کښې نیرنګ عشق هم خپل نوم ویستلی دی او یو لوړ ادبـــی‌شاهکار بلل کیږي .
دغه ادبي شا هکار تراوسه‌پوری‌دهر چا لا سو ته نه دی و ر رسیدلی او ډیر شوقیان ورځنی نا خبره‌دی،که څه هم یو ځل په هند کښی‌چاپ شوی ؤ خو اوس یې چا پې نسخـــې‌نه موندل کیږي .

پښتوټولنې په ۱۳۲۰ کال‌کښــی‌دحمید داشعا رو دیوا ن چـه پـه «درومرجان» مشهور دی په ډیر ښه‌ډول چاپ کړ او دحمید دشاعرۍ په خوږو نغمو یې بره پښتو نخوا هـم‌خبره کړه . دحمید یو بل خو ږ اثر (دشا ه‌ګدا) قصه یو څو کاله پخواپه‌پېښورکښې دښاغلی همیش پـــه اهتمام چاپ شوله . دده یو بـــل‌اثر (شرعته الاسلام) هم په هندکښې پخوا چاپ شوی دی .

مګر نیرنګ عشق په ښه ډول دچاپ ډګر ته نه ؤ راوتلی ، له دغـه کبله پښتو ټولنې اراده وکړه چـه‌دغه خوند ور او په زړه پوری اثر په ښه توګه د چاپ ډګر ته راوباسي اوډپښتو ادب دمینانــو ادبــی تنــده ورباندی ماته کړي .

لومړی دنیرنګ عشق دنقلولو اوسمولو کار ښاغلی شاه ولی صافي دادبیاتو دڅانګې غړي ته وسپا ر ل‌شو. هغه له یوی زړی قلمی نسخې څخه په اوسنی لیك دود نقل کړبیایې دښاغلی بختاني او سیفي پـــه مرسته له دوو نورو قلمي نسخـــوسره په ډیر غور مقابله کړ .

وروسته ما هم دملي او رسمـــي وظيفي په توګه نقل شوی نسخه له دريو اړو قلمي نسخو سره مقا بله کړه اوکوم ځايونه‌چه پکښې‌پاتي وو ياناسم نقـــل شـــوی ووهغــه مـــی‌سم کړل ...تر څوچه پښتو نيـــرنګ عشق دچاپ دپاره تيار او برابـــرشو .

دحميد نيرنګ عشق چه له کومونسخو نه نقل شوی او مقابله شوی دی هغه په دی ډول ښودل کيږ ی.

۱ـ دادبياتو دپوهنځي نسخه ـدغه نسخه تر ټولو زړه او ډاړ منه‌ده چه په پاخه نستعليق خط ليکل‌شوی‌ده . موږ دغه نسخه ترټولو غوره ګڼلې ده نو ځکه اصل متن و رځني نقل شوی او بيا له نورو نسخوسره مقابله شوی دی .

۲ـ دکابل دعامي‌کتابخانی‌نسخه ـ دا نسخه په۱۲۸۲هـ کال دجمـعدار محمد نورپه سپارښتنه‌ليکل‌شوی‌ده خط يې نسخ دی ټـول مخونـه يې (۱۵۲) دی چه‌هر مخ يې (۱۱)بيتونه‌لري . دا نسخه هم تر ډيری اندازی سمه ده او دو همه درجه لري .

۳ـ دپښتو ټولني د کتابخا نـــي‌نسخه ـ دا نسخه تر ټولووروستني ښکاري ،خط يې نسخ دی، مګرپوخ‌نه دی . دانسخه هم (۱۵۲) مخونه لري چه په هر مخ‌کښې (۱۲) بيتونه‌راغلي دی .

لکه چه ښکاره ده ښاغلي‌شاه‌ولي‌دنيرنګ‌عشق دنقلو لو اوسمولو په کار زياتي دلغاتو دمعنی کولو په‌کارکښې هم ډير زيار ويستلی دی او ګران لغات يې حل کړی دی‌سربيره‌پردی يې په حا شيو کښې دبيلوبيلو نسخو ترمنځ‌دکلمو يا بيتونوتغيرونه‌هم ښودلی دی ددغو دريو اړو قلمي نسخو دپاره دغه وروسته اشاری ټاکل شوی دی :

دادبیا تو نسخه (ا) - د عا مـی کتابخا نی نسخه (ع) دپښتو ټولنی نسخه (پ)

دا هم بایـد ووایو چه دنیـرنگ عشق دسمونی او کتنی کار د۱۳٤۸ کال په جدی کښی پای ته و رسیدبیا د۱۳٤۸ کال ددلو په اول دو لتی مطبعی ته دچاپ دپاره واستول شواوپه پنځو میاشتو کښی دښاغلـــی محمد شیرین او ښاغلی لودین پـه‌تصـحیح او اهتـمام چـا پ شـو د۱۳٤۹ کال دجوزامیاشت.

(رشتین)

# دحمید نیرنگ عشق

نیرنگ عشق د حمید مومند یوداسی لوړ ادبی شاهکار دی چه په دغه اثر او نورو آثارو و رته دپښتنوادیبا نو لـه خوا د (موشګاف) لقب ورکړ شوی دی .

دنیرنگ عشق اصلی داستا ن په پارسی کښی مولانا محمد اکرم غنیمت لیکلی دی . دی دپنجاب د(کنجاه) نومی کلی او سیلونکی ؤ چه د(چمنت) په دوواه کښی یوځای دی .

مولانا غنیمت داو رنګ زیب مغولی پا چا هم زمانه (۱۰۹٦)ه او دهغه یوخاص ستا یونکی دی . کله چه مولانا غنیمت دعزیز او شاهد دمینی دغه خوږ داستان و لیکه نو دیر زر یی د شهرت غږ خورشو او دبګرام په لاله زارکښی دحمید غوږونوته ورسید دده په زړه یی پو ره اثر وښنده او نیت یی و کړ چه د غه ناشنا داستان په خوږه پښتوواړوی او ادبی مجلسونه وربا ندی تاوده کړی لکه چه دغه مطلب داسی ښکاره کوی :

دا قصه ده او ر حصه زما صاحبه
دکنجاه محمد اکرم کړه پار سی ژ به

چه یی و لګید ه تاب زما په زړ ه
لولپه یی کړ کباب ز ما د زړه

خواه نا خواه را غی هو س چه یی پښتو کړم
باندی ګر مه هنګا مه د پښتنوکړم

حمید ددی سوځند داستان ترجمه په آزاد ډول کړی ده، یعنی مطلب یی دپښتو په خوږه مثنوی کښی بیان کړی دی او ټکی په ټکی ترجمه یی نه ده کړی .

دمولانا غنیمت دقصی په سر کښی دشیخ عبدالقادر جیلانی ،شاه صالح محمد او او رنګ زیب پاچا ستاینی هم راغلی دی مګر دهغو له تر جمی

څخه‌حمید لاس اخیستی دی او په‌اصل داستان یی لاس پوری کړ ی دی .

مولانا غنیمت د او رنګ زیب یوډیر اخلاص من شاعر معلو میږی‌لکه چه وایی !

بدور عدل این شاه ستم سوز سګ آید بر در رو باه هرروز
که من از بند ګان جان فشانم چه میګویم سګ این آستا نم

په دغه وجه سره دهغو چپاوګروپښتنو ته چه د(شاهد) په کلی یی یرغل راوړی ؤ،بد ویلی دی او په‌ستغو او سپورو الفا ظو یی یادکړی دی .

که څه هم حمید دشعری امانت په‌توګه هغه ټول ترجمه کړ ی دی ،خو مونږ هغه بیتونه په چاپ کښی‌رانه وړل، ولی‌چه‌دادب‌له چوکاټ نه وتلی ښکاریدل . په هرصورت دلته‌مونږ غواړو چه د غنیمت او حمید دمثنوی ګا نو یو څو بیتونه دنمونی‌په توګه را وړو او دا خبره ښکار ه کړو چه دحمید تر جمه په ډیروځایوکښی له اصل پارسی نه ډیره قوی ده . دمثال په توګه یو څو نمونـــی‌وګوریء .

پارسی

درین‌کشور که پنجا بش بود نام فقیری بود بس نیکو سر انجام
بدا مان قنا عت پا کشید ه زیارت ګاه د لها ی ر مید ه

پښتو

په داهسی حسن‌آباد دیارکښی‌دله ښه‌دزړه په غورووواوره دابد له
یو فقیر ؤ دمعنو په ملك امیر دبشر له شر که پاك لکه ضمیر

یو فقیر ته دمعنی دملك امیر ویل‌او دبشر له شرکه یی پاك بلل یقیناً یو داسی سپیڅلی تعبیر دی چه‌په اصل کښی نه لیدل کیږی .

یوبل مثال : پارسی

چومن این ګوهر سیرا ب سفتم شنیدن را مبارك بـــا د ګفتم
نه شعراین انتخاب عشقبازی‌است تراوشهای زخم جانګدازی است
نه شعراین‌شورش امواج خونست حدیثی از لـب ز خم درون است
نه شعر این‌ناله خونی نواییست شکست شیشه دل راصداییست

## پښتو :

ماچه و پیبل دا در په بـا ر یکی
غوږو و رکړ ی یو له ب ل مبارکی
چه د آب‌ســړ م هوایی‌شوه ولاړه
دیا قو تو له با زاره گرمی لا ړه
شعرنه‌دی داخوناب دزخمی‌زړه‌دی
یاوتلی‌وروستی‌دم له خولی‌دمړه‌دی
یانغمه دنیم بسمل مرغه دخولی‌ده
یا مجنون ته معما ښکلی لیلی ده
یادوینو ابا سیند وهلی موج دی
یاله ښاره د حیرت وتلی فوج دی

لکه چه گورو دحمید په ترجمـــه‌کښی دمړی دخولی وروستی سا ، دنیم بسمل مرغه د خــولی نغـمه ،مجنون ته دلیلی له خوا معمی او د حیرت له ښار نه د فوځ وتل داسی‌تشبیه گانی دی چه په اصل پارسی کښی نشته او دی ته مونږ دحمیدطبعی زور ازموینه ویلای شو .

دحمید په نیرنگ عشق کښی پرخوږو تشبیهاتو او نا درو استعارو سربیره دسوچه او خوږی پښتــوډیر خواږه تعبیرونه هم شته چــه دټولو خیرنه پو ره وخت غواړی .مثلادنا پوه او نادان پوچی خبری او ورانه خوله یوه ماته میچن بولی .

دنادان له وچوپو چوبی پروا یم بی هوده ما تی میچنی ته څه وایم
ماته میچــن هسی بــی فا ید ی‌گړ بیږی او څه فایده تری لاس‌ته‌نه راځی نو دنا پوه او نادان دگړ بیدوهم دغه حال دی .

دحمید په نیرنگ عشق کښی دپښتو ډیر سپیڅلی لغتو نه هم شته چه یوه ډیره غوره ادبی پنگه و رته‌ویلای شو. ددغو لغا تو لست‌دکتاب په آخر کښی راغلی دی . دحمید یوخوند ور لغت د (لالن) کلمه ده چه دی یی دلالی یعنی گران محبوب اودزړه سر په معنی استعمالوی مثلا :
هرچه نه ده محمد کړی لا لنــه مه‌کړه ته هغه بند گی هغه پا لنه
دی وایی ای لالیه ، ای د زړه سره‌څه‌چه محمدنه دی کړی هغه‌ته هم‌مه‌کوه

لنډه داچه‌دحمید نیرنگ عشق له‌هره پلوه دپښتو یو لوړ ادبــی شاهکار دی چه مو نږ یی په ډیره مینه او اخلاص د پښتو ادب دډیوی لولپه پتنگانوته وړاندی کوو .

(رشتین)

# بسم الله الرحمن الرحيم

پس له حمده له‌درو ده‌وایی دا

داپه‌در دبشکلی مخ ولاړ کدا

چه‌په‌و خت داورنګ شاه آتش پاره

له‌مجمره دپنجاب شوله بشکاره

زمانی په‌هیر پوکل سره بل اورکړ

بیایې پورې دعزیز دزړه په کورکړ

داقصه داور حصه‌زماصاحبه

دکنجا محمد اکرم کړه فارسی ژبه

چه‌یې ولګیده تاب‌زماپه زړه

لو لپه یې کړ کباب ز مادز ړه

چه‌مې ولیدداکتاب سیم‌وذهب

مشتمل پرمسئلو دخپل مذهب

له‌مجازه‌حقیقت ته رسیدلی

بلوسپدلی په کبر وسمر سیدلی (۱)

---

۱ـ په (ب) او (ع) نسخو کښی (لمسیدلی) دی.

خواه ناخواه اراغی هوس چه یې پښتو کړم
باندې ګرمه هنګامه د پښتنو کړم

چه یو څو ورځې خاموش لکه صدف شوم
دذې درو په پیلو مشرف شوم

که هر څو مجازی مینه ناروا ده
هیڅ د شرعې شرم نه لری رسوا ده

بیا چه پول د حقیقت مجاز وایه شی
میبا ید چه دې شکست ته ساز وایه شی

ما تول د ساز و لوی په مطلب
عیب نه لری ملا مه چیچه لب

دسا ئل له مقاصد و مقابل
کله کله شی و صول لره قابل

پیژاندهٔ د څیز له ضده د څیز هم شی
څه لازم دی چه دې پیژاند په لازم شی

مونږ ه یږ خلق لیدلی او رید لی
په مجاز وحقیقت ته رسید لی

اوریدلی مې دا نقل مکرر دی
البته چه مکرر یې (۱) مقرر دی

---

۱ـ د (پ) او (ع) نسخو کښې دا تورې د (دی) او (او) په صورت دا غلی دی ۰

چه اول به (۱) نیك انجام مولوی جام
ځښه شراب د مجازی میڼې په جام
وظیفه یې وه په طور د پا کانو
محبت په ساده رویو هلکانو
هسې رنګ به په داشمع پروانه شو
چه به درست له نامو ننګه بېګانه شو
هسې شان په مبتلا میڼې اور شو
چه به سپك لکه بڼه د علم غر شو
چه به نه ؤ یوامرد په مدرسه کښې
پل یې نه ایښو خرد په مدرسه کښې
آینه چه به یې مخ ته ښکلی مخ ؤ
تو تا طور به یې هاله ګویا په سخ ؤ
چه وا هه به یې په داشکرو شخوند
لو لو لو به یې هاله کاوه خو ند
چه غلام د غلامۍ په محبت شو
نهایت په داسودا کښې یې محنت شو
یوه ورځ خواجه احرار سنګك پارس
د کرم په ښیښه زر کړه د ده مس

۱ – په (پ) او (ع) نسخو کښې دغه توری د (بی) په شکل دی.

چه نظر کیمیا نظیر په حال دده کړ
مشا هده یې نا تمام کمال د د ه کړ
و ې څه عجب ملا مې معتبر د ی
حیف دا چه له با طنه بې خبر د ی
څه حکمت عملی معین (۱) راوړی
چه ظاهر یې پر کو پار د باطن راوړی
هغه دم له خلقه ګوښی په تد بیر شو
په صورت دښا یسته هلك تصویر شو
آر استه و پیر ا سته په کمال حسن
نوخا سته و بر خاسته په کمال حسن
غمزه ګر ؤ شیو ه ګر و لکه حوره
فتنه ګرؤ جلو ه ګر ؤ لکه حو ره
نا ګـهان په مد ر سه د ملا ر ا غی
په لبا س کښې د بلا په سلا ر ا غی
د مـلا پـه مـجر د د لید و د لـه
صبر هوش قرار یې و الو اته په بله
دم یې نه و اهه بې دمه تش کا لبوت شو
له هیبته (۲) حیر ان پا تې لکه بوت شو

۱ ـ په (پ) او (ع) نسخو کښې (معا ین) راغلی دی .
۲ ـ د (ع) نسخه (حیرت) دی .

نهایت چه غلبه ور باندې شوق شو
محبت یې د ناموس دغاړې طوق شو

دا یره شوه د قرار ور باندې تنګه
دوقار شیشه یې و ویشته له سنګه

لاعلاج له ځایه پا څېد ه و لاړ شو
د دې صید د نیو لو په و یلاړ شو

په بانه بانه (۱) ترهغه بیاترد ې شو
عاقبت په څه تقریب ور ته نژدې شو

هسې سحر هریوه په بل بنیاد کړ
چه هریو یې د بل (۲) صید هم صیاد کړ

چه خواجه دملازړه یووړ یك لخته
نوریې واخسته یك لخت ور سره سخته

نر ناحق مر ور ځنې په ځنګك لاړ
چه آشتې لره راغلی ؤ په جنګك لاړ
هغه ووت لـکه روح له هـدرسی
دی جوسه غوندی روان شو ور پسی

که هزار زاری رو یو نه کړه ملا
خواجه نه کړ التفات ور ته اصلا

---

۱ـ په (۱) نسخه کښی دا بیت نشته خو د (پ) او (ع) نسخو کښی راغلی دی.
۲ ـ په (پ) او (ع) نسخو کښی د (ځان) په صورت دی.

شو به ده خواته کاوه هومره په شاته
له کما لې تمنا په استغنا ته
تر هغه شو یوې کندې وته کوز شو
دملا تر ستر گو پټ په څه رموز شو
بیا خواجه ور ته ښکاره په خپل صورت شو
له دې کاره مولوی په ډیر حیرت شو
زر را و لو یده حیران په پښو یې پر یووت
له مجازه تو به گار په ښو نې کښیووت
چه اول (۱) یې پر ې را ښکلې ؤ صورت ته
په هغه جذبه یې را کیښ حقیقت ته
چه یې پو ور باندې دم د شفقت کړ
له مجازه یې مشغول په حقیقت کړ
ور ته لرې کړ خواجه په ډیر د قت
د مجاز په کو نجی و ر د حقیقت
مجاز هر چرې کارساز د حقیقت دی
نور دې پاتې په دا کار کښې څه دقت دی
مینه بو یه حقیقی که مجازی وی
میدان راپیره په جنگ که په بازی وی

۱ ـ په (ع) نسخه کښی (پیر یې) راغلی دی .

که دسپی په پیروی‌مومی یارخوك

په‌دا کار دې اصلانه کاعاردیارخوك

دحمید بوا لهوسی نا کسی نه ده

په هر کار کښې مناسب غوررسی نه‌ده

لتوی په خپله و رکه پسی هر مخ

کوم صدف به‌ورښکاره که‌م گوهرمخ



## وصف دپنجاب دملك چه وطن دشاهدلستان ؤ .

اوبیان دتولد او تربیت دحسن دده

دا سلا به که صلاح فکر سلیم
چه پنجاب دی انتخاب دهفت اقلیم

چه په خاوره یې قسم آب گوهر (۱) خوری
ددې هسې ملك او به به بختور خوری

گرد و بادیې دصحرا عطر فرسای دی
آسمانو نه یې دځمکې خاك پای دی

چه نسیم یې په گل گشت پاځي ددشت
عاقبت یې سپیني بوی شي دگشت

ده دزړه کعبه بنا دده له خاورو
کا ظهور نور دمعنا دده له خاورو

رنگ وبوی لری دگل غبار دده
دارم ارام بښی (۲) گلزار دده

---

۱ ـ په دواړو نسخو کښې یې (گوهر) لیکلی دی چه (دگوهر د آب) معنا ورکوی . که دگوهر پر ځای (کوثر) ووایو هم ښه معنی ورکوی او دفارسی اصل سره مطابقت لری .

۲ ـ په (پ) او(ع) نسخو کښې (دبریښي) په صورت راغلی ده .

هر گیاه یې پېچو تاب لری د زلفو
تما می داب و اداب لری د زلفو
له اوبو یې دشراب اثر مو نده شی
له شرابو یې خمارد گو ثرمونده شی
په هوا یې د هوا هـوس
اواره کړ د هر چا دزړه جوس (۱)
هر دیاریې کـا په ډېـره چپړو سی
لور الو ر دغره د سم قدم بو سی
هر مرغه یې په سبزه هسی شان کښېنی
لکه خضر په چشمه د حیوان کښېنی
چه گلو نه یې جلوه په خاورو وکه
دیا قو تو په اور ویلې کاندی څمکه
چه یې باد باده د گلو وڅښی پا ځی
دبلبلو په نغمو په سر ود نـا ځی
هسې گل یې پیدا کیږی په چمن کښې
چه شرمیږی څنې لعل په یمن کښې
چه ادا حسن دده له فراش (۲) ویښ شی
د کشمیر د گلو زړه پسې میش میش شی

۱ ـ په (ع) نسخه کښې (دجرس) په شکل دی .
۲ ـ د (؟) په نسخه کښې (فراش) . په ځای (خوب) او (دگلو) په ځای (ښکلیو) داغلی دی .

چه ساړه اسویلی کا پسې له درده
دکابل په دا سبب ده هوا سره
په بازار کښې يې خوبان په هر هر لوری
په سرو شونډو له کو ژره شکر پلوری
چه ښتان بازار د حسن کا ندی ګرم
سنګدلان کا لکه موم په آتش نرم
چه يې حسن لکه نمر هسې لمعان شی
بر ښې په ستر ګو کښې دمصر دکنعان شی
په دا هسې حسن آباد(۱) ديار کښې دله
ښه دزړه په غوړ و وا و ره دا ښد له
يو فقير ؤ د معنو په ملک امير
د بشر له شر که پاک لکه ضمير
په لمن د قناعت کښې پښې را ښکلې
د غفلت له خو به ستر ګې د زړه مښلې
نجابت يې خبا نه زاد ؤ د ګوهر
سيادت يې اعتما د ؤ دا ختر
يوه مياشت يې وه په عقد دنکاح کښې
لکه حور ه په رضا او په صلاح کښې

(۱) د (پ) په نسخه کښې (رنګ آباد) دی .

چه بارش ابر بهار په خپل اطوار کړ
و صدف ته یې عطا د رشهوار کړ

لا جلوه د درموقوفه وه په وخت
چه باد یو وړ د بهار د ابر رخت

جلوه ګر چه په مو ده هغه ګوهر شو
بیا یې ګرد د یتیمۍ نوی (۱) په سر شو

چه یې حسن په دعوه د حسن ګواه ؤ
د شاهد په نام نو مړی خواه ناخواه ؤ

ورځ په ورځ مخ د فقر له ایرو
لکه لعل صیقل اخست په وروورو

له تنګۍ پرې د رزق هسې بدحال ؤ
چه به مور ګه د روتۍ ورته هلال ؤ

اغوستن یې آیینه غوندې نمد ؤ
په خوارۍ کښې یې د حسن برامد ؤ

هسې ګل یې په خزان کښې راووړ ښاخ (۲)
چه بهار نه شرمه ګوتې کړې په غاښ

۱ ـ په (پ) او (ع) نسخو کښې (ڨو یی) دی .

۲ ـ په دواړو قلمي نسخو کښې یې (خاښ) لیکلی دی چه د (غاښ) سره په یوه قافیه کښې راتلی شي ، د پښتو په شرقي لهجه کښې د (ښ) او (خ) اواز یو تر بله نژدې دی او (ښاخ) هم د (غاښ) سره په یوه قافیه کښې راتلی شي . ځکه شاعر استعمال کړی دی .

لکه (۱) نمر هسې چه مخ په طلوع راغی
دجهان د پریشانی په شروع راغی
لسم کال هسې او بهور کړې مشهورې
چه یې ووا هه چورنګ (۲) دحسن تورې
د بنا یست شهرت یې لاړه ښهر په ښهر
د د وهی په خبر یې و سو تمام دهر
چه یې سروه د قامت په اقامت شوه
په جهان کښې غوغا ګلې ه دقیامت شوه
په هنګو ر د ده د حسن هـره ژ بـه
د کوه طور د و نې پا ڼه و ه صاحبه
هر خاطر یې د آرزو له شوا خو نـه
لاندې باندې شنه تړ انګه شوه پر خوله
چه شهره یې په هر ښهر خوشرنګی شوه
ور دوخار ه په دار ننګه نیرنګی شوه
یوه ورځ له یوه لوری شوه و رپېښه
طا یـفـه د بنګتیا ؤ بـد انـد یـښـه

۱ ـ په (پ) نسخه کښې دا بیت داسی راغلی دی :

(لکه نمر یې هسی مخ په طلوع راغی داجهان د پریشانی په شروع راغی) .

۲ ـ په (پ) او (ع) نسخو کښې (څو رنګه )دی .

چه یې و لید لکه لعل په اېر و کښې

نور یې مو ر ته شو و نژدې په مسخر و کښې

څه یې ز ر ځه یې هنر کړ مستمند

د هغه شپږ هم شکار آ هو کمند

له هغه ځایه یې بوت وخپل اتاق ته

منتظر د نصیبې وجفت وطاق ته

دخپل علم په تعلیم یې تر بیت کړ

دعصمت ر نګ یې په راګ دمعصیت کړ

سازو باز نرم او ازیې ور ته و ښو

دقد م نا زو نیاز یې و ر ته و ښو

چه استاد دهغه ګروه په هر هنر شو

له صد فه لکه د ر په ښهر د ر شو

ښهر څه چه ارا م ګاه ؤ د عشاقو

هر بازار یې تو د په آه ؤ دمشتاقو

دراتلو غږ یې چراغ د هر مجلس شو

په هوا یې د تقو ی غنی مفلس شو

هوا خواه یې په سر ود (۱) داور یدو

مګر ر چند ې کړ پو ر ې د لید و

---

۱ - په (ا) نسخه کښې (سرود) ذکر شوی دی.

راشه راکړه هغه می‌ساقی مهوشه

چه یی تل راته تو ندی ستایی بی غشته

هواره تشی قصی دورید و کړه

۷۰ ام خماردآو ریدو پوخ په لیدوکړه



# بیانول دعشق دعزیز پهشاهد دلستان باندی

## وهمزولوته ویل دخپلې میني

یوه شپه چه یې سیا هی دستر کو نور وه
رو شنا یی یې دجهان وړې په چو ر وه

دهو سو لـه شو خو ستر کو وه یستلې
له شو خی په مخ دخلقو وه زغا ستلې

د لیلی له تو رو ز لفو خرا په خوا وه
د مجنو ن له بې خو ا بیه بې پر و ا و ه
هغه شپه له بې خـو ا بی د شمعې د ل
پـړ کید ه لـکه مـر غـه پـه نیم بسمل

دچراغ لو کی یې ز لفې سنبل کو ن ؤ
چه یې کړ ی په نگهت د گل شبخو ن ؤ

هغه شپه یو ځـو یـا ر ان هو س طلب
یـو لـه بلـه د هـو س جـو س طـلب

د م قد م د یو ه سن پـه یو ه سند کښې
پیچید ه لکه بـو سه په شکر خند کښې

له اغیاره کنداره په مجلس ناست وو
په دولت کښې له دولته مفلس ناست وو
مې و نی، چنګک و رباب یې سره جوړ کړ
دمجلس همه اسباب یې سره جوړ کړ

تماشې ته یې (۱) د ښکلو له لمعا نه
وو ولاړ هزار کشمیر، هزار کنعا نه

دخا مې (۲) د مدارئ‌له ازبرایه
دزهرې ورته زهره چاووده له ورایه
که یې دم که یې قدم ؤ په قانون ؤ
افلاطون دزما نې پکښې مجنون ؤ

د ساقې د مستو سترګو اشارت
چنګک و نی بیانا وه په عبارت

ثریا بنات النعش یې ساز د بزم
نه په نثر سره ګډ شو نه په نظم

هر یوه په خو ښول دیل صاحبه
لکه شمع هسې اورا خست په ژبه

ګفتګوی یې سره کړ له هره بابه
خصوصاً د محبت له دابادابه

۱ - په (پ) او (ع) نسخو کښې د(نه ددې ښکلو) راغلی دی.
۲ په (ع) نسخه کښې دا مصرع داسې ده ( دخامې مدارئ له ازبرایه).

تمامی اهل مجلس پـه ګفتګوی
په مجلس دفصاحت کښې واهه ګوی

هسې شان سره مجلس یار انو جوړ کړ
چه عشرت یې د جهان ټکښې نچوړ کړ

چه په هیڅ سرو سامان نه ؤ نیمګړی
ځکه ؤ په جمعیت دزړه نومړی

وار په وار یې کړې قصې د غم حصې
آلـوده د محبت پـه غـم غصې

وې یې څه له ګذشته ؤ شرو شور کړی
دژوندو ترانه واوری ؤمړه در ګور کړی

چه د درست مجلس په ګوته کښې غمی ؤ
عشق اندېش محبت کېش (۱) غوره ځلمی ؤ

د عزیز پـه نـام نـو مـړی بـا تمیز ؤ
په هـر چـا لـکـه نـامه هسې عـزیز ؤ

---

(۱) په (پ) او (ع) نسخو کښې دا مسره داسې ده :

(عشق اندېش په محبت غوره ځلمی ؤ)

چه زوولی څنې دی بدر منیر ؤ
هغه کس د عالم گیر بادشاه امیر ؤ
په عزیز چه د شاهد د میندی څله
غلبه شوه زهایت په یوه څله
هیڅ یې نه و اته په غیر فکر ذکر
ذکر، فکر و د ده وه ی په فکر
په دې ښهر کښې نن شپه یوه پښه
پښه شوې وه په لوېه خر خښه
یو ټولی دی په لباس د بګتیاو
چه درو غ د دوی تیری کړی تر ښتیاو
هم سفر یې په کاروان کښې یو یوسف دی
چه محل د مهر و ماه د تاسف دی
پری وش د پتنګا نو همه جمع
په نڅا کښې وهی څرخ په هغه شمع
مقلد، مشعبد، بګت باز ان دی
د خپل فن په اصطلاح کښې استاذان دی
هر احد چه د سرود په نغمه ناڅی
ته به وایې کنه موم په لمبه څاڅی

خو خو رنګه رنګ ورانګ په عمل راوړی
یو صورت په خو معنو محتمل راوړی
په څو شانـه مختلف اشـکال تـړی
هیڅ می نه زده چه پیر یا ندی که سړی
کله ښځې کله نر کله هـجـړی شـی
کله دیـو کله پیری کله سـړی شـی
ګاه هندوان ګهی سنی مسلمانان شی
ګاه شیخان تسبیح په لاس ګاه لونډان شی
ګاه جوګیان ګاه سیناسیان (۱) ګهی سکان شی
ګاه مغل غو زدی پګړی، ګاه افغانان شی
کله سپی کله مزری (۲) کله آهو شی
ګهی روغ ګاه لیونی سر په هاهو شی
دم په دم هسې پیښـه څـر ګندوی
چه غمجن خو شحالوی مړه خندوی
چه سبب زما د هوړه تـاسف دی
دی قوم په کاروان کښې یو یوسف دی

---

۱ ـ په (پ او ع) نسخو کښې (سناسیان) راغلی دی .

۲ ـ په (۱) نسخه کښې (مزری) راغلی دی .

چه یعقوب زما دزړه پکښې پر یشان دی
هم سفر هغه یو سف ددې کاروان دی

هر طر ف تـه یـې د حسن لـه لمعـا ن
دی ولاړ هز ار یو سف هز ار کنعا ن

یا نر حو ر دی په ښا یست یا ښا پیری دی
نه غلط شو م په دادواړو کښې تیری دی

له حجا به چه ئې مخ و و هی بـر ق
نشی هیڅ د د ه د بـر ق د شوخۍ فرق

چه یې بله د مخ شمعه رو ا نه (۱) شی
هغه دم ور با ند ئې جمعه پر و ا نه شی

لعل ئې شرم کا له شو نډو په یمن کښې
ګل ئې سهم خوری له مخه په چمن کښې

خو له یې ر مز له تنګۍ لن تر ا نی کا
په نیم حرف یې د تو تی ژ به ګر انی کا

چه یې شر م کا له ستر ګو د هر د هـر
ځکه نه کو ی و یـسا هو سۍ پـه ښهر

(۱) د (۱) په نسخه کښې (و ر ا نه ) دی ؛

چه د ننه کـا چمن تـه پـه ښېو ه پښه
په خد مت يې سر و ی و دری په يوه پښه
چه يـې و و يني هنګا م د حيا ګـر م
شوخې ســتـر ګې نر ګس کوزې کا په شرم
چه د ر غال شـی د چمن پچه پچه (۱)
ې که خو له لهو ينو و خا ند ی غونچه
تل د د ه د مستو ستر ګو لـه ګا يله
په عـو ض د و ينو میځی ز مـا د لـه
هسی ز يب کا سم قـا مـت د ګلعذ ا ر
لکه سور په‌و ينو تېغ (چه) کړی ګوزار
په محر ا ب کښې يې د و روځو لکه‌خال
هر زاهد په سجده‌پروت وی خسته‌حال
چه تر د ې د ده فر يـا د متحمل شـو
نو ر قر ا ر هغه مر غه د نيم بسمل شو
نه پو هېږ م څه مد کور هغه قفس کړ
چه يې او ر په ځا له پو ری د نفس کړ

(۱) په دوا لسه نسخو کښې پچه پچه دی ښا يې پچې و ی .

چه چراغ دقتل تو ره و ښکه د ر ستة
پر و ا نه د شـها د ت و ینا و لـو ستة
گفتگو ی یې تما مـی ا هـل مجـلـس
د شعو ر له مـال و ملکه کړ مـفـلـس
ځا نه ځا ن په ټال د فکر ځنگېد ه
د آ ر ا م لـه د لا ر ا مـه جـنگـېد ه
اوریدو د لید و کا ر و کړ په زړه کښې
د عیسی له دمه ، دم راغی په مړه کښې

خصو صا هغه عز یز هسی بې هو ښ ؤ
چه له ډېره درده دو که په هوښ هوښ ؤ
تا به و ې چه گڼه ښېښلی ده شر اب دی
یا لید لی د ه پېر ی چری په خوا ب دی
گا ه به کښېنا ست ځوړ ند سر لکه نر گس
ستر گې کو ز ی له گل ر خو د مجلس
گا ه به مست بېهو شه لاړ په هسی ر نگ
چه د ښنو به یې و ا هه په سینه سنگ
نا د ید ه ې د د یـد ا ر متحمل شـو
د نا مې په ا و ر ېد و د تیغ بسمل شـو

عاشقی موقوفه نه ده په لید و
دا فتنه اکثر پاخی له اورید و
راشه راو یه چنگک وني مطربه غبرګکړه
مشرف مې د دیدن په زیری غوږ کړه
چه په تشو اورید و هسې کهیږم
د لید و په وخت به څه شم نه پوهیږم






# اجتناب دمحتسب په شاهداو په‌لیدل دده مین کیدل

## او خبریدل دقاضي په‌داحال اوویستل دشاهد.

چه ظاهر پکښې د حسن طمطراق شي

هغه ځای د صبر زهد طاقت طاق شي

چه یې غشي د نظر بلې لمبې وي

هغه مخ ته پارسایي په‌سرپښي (۱) وي

موم له اوره سره څه کا یخ له‌نمره

څه شوخي د سپند رسي له مجمره ؟

که د سر سلامتکي غواړې ای وروره

په وشکلو تورو مه خپره ځان ژغوره

رستمان د صبر زهد پـه دا په ځمکه

و هلک ته دزاری وا بنه خوله که

خسو خار کاندي د دې د رو دیوار

په بلند آواز دعوی دا نا الغار

په یوه نظر دعقل ه پـرو ګړی

دې خو بانو لېوني مسخره کړی

---

(۱) په (پ) نسخه کښې (په پښې وی) دی.

چه یې خو ند دخو یږوشو نلو و بلا خپز دی
فر ما یلی تر ې طبیب ځکه پر هېز د ی

له شاهده سره ستا څـه د ی ز ا هـد ه
داد عو ه کو ې بې ګو ا ه بې شا هد ه

ز نا حقه ز یـا تـو ې د ز ړ ه مـر ض
وا و ر ه هلته څه غر ض چه نه غر ض

له خو با نو سره ځا ی د پر خا ش نشته
بې د ز م قـد م نیو لـو تـا لا ش نشته

چه غو غا شو ه د شا هـد د حسن عا مه
عا م و خاص یې بهر مند شو له انعا مه

په هر ځای چه به یې مخ کړ ه بله شمع
پتنګا ن غو ندې به خلق شو و پر ې جمع

مستو ر ی بـه یې د حسن لـه سـر ا غـه
په ر و ش به سر و ی سر و کېښ له با غه

شیخ ملا چه به یې سو د په ا فسا نه کړ
په د ا کا ر به ې مسجد قصه خا نه کړ

هسې شا ن یې شو دو کا ن د حسن ګرم
چه یې ما ت کړ د هر چا د شر م د ړ م

په ولاړه یې شوه د مخ فتنه ولاړه
نهایت تر محتسبه پورې لاړه

محتسب د احتساب په طمطراق شو
پروانه د هغې شمعې تر اتاق شو

په لید و د محتسب بګت بازان
ځانه ځان لکه زاغان شو وګرېزان

هغه ځای یې له هیبته د زاهد
د غونچې په څېر او ده پر ښو شا هد
چه په اصل بګتیا و و کو فتیا وو(۱)

مخ یې ورك شه که اته وو که اتیاوو

محتسب چه نا امید هلته له بل شو
ګېرو پېر (۲) په هغه ګل لکه بلبل شو

عاقبت یې کړ پلو له مخه پورته
پروا نه غوندې ځان وا چاوه اورته
چه او ده فتنه یې و لیده کړه له خوبه

د آرام کشور یې لوټ شو له آشوبه

۱ ـ په (۱) نسخه کښې د (کو پتیا و و) په صورت دی .
۲ ـ په (پ) نسخه کښې دا مصرع داسې ده :
( ګیر و پیر لکه بلبل په هغه ګل شو )

چه یې ستر ګې کړې د ناز له خوبه غوټې
پرې تو یې کړې دعشق دا ور سکروټې
په یوه نظر یې هسې د یوانه کړې
چه یې درست له عقل هوشه بېګانه کړ
هسې غشی یې په زړه و خوږ ورسا
چه د وعظ د میې نه و اهه پار سا
طمطراق دا حتسا ب شو څنډې پاتې
د پرهېز داب وداداب شو څنډې پا تی
ور ته هسی حیران پا تی لکه بوت شو
دم یې نه وا هه بې دمه تش کالبوت شو
په دب دب یې شوه دعشق پا زه د پا سه
د ادب د ره یې پر پو ته لـه لا سـه
چه یې بل لره راوړې وه تیا ره
په هغه دره یې ځان و و اهه یا ره
د ګیډۍ و ښکاریې کړ په مزری واوښت
د بـری د پا ره ته په لری و ا و ښت
خام خما ر یې د تقوی له سره کوز شو
شور و شر چه یې کاوه پوه په رموز شو

هنگامه د جنون هسې شو لـه ګر مـه
چه دا نش يې دم وا هه نه شو له شرمه

دم په دم ځنې ژوندون د تلو رخصت غوښت
عزرائیل يې ساه وښکو ته څه فرصت غوښت

چه شا هد د محتسب په شکست پو ه شو
په رسا ګوزار د حسن په شست پوه شو

بې وسو اسه يې له لاسه مفتون و نیو
په دار نګ يې ورته جام دافسون و نیو

وایه چېرې په ذره مهر تا بان شوې
څه مطلب لرې که محض مهربان شوې

وې يې ور سپېد م بس که و مطلب تـه
نو ر مې لا س د ا يذ اماچو ه جلب ته

هی تو به د ا حتسا ب له وچو پو چو
د غرور اس مې واهه په کو چو کو چو

که هر څو مې مطلبو نه دز ړه نور شوو
په لیدو دستا د مخ واړه در ګور شو و

سرو ما ل مې در قر با ن عقل فـد ا شه
صبر ز هد مې در ځا ر په داسو دا شـه

چه مې کړې وه پخوا آر د ی جا نی
په هغه تو بې کو م ا و س پښېما نـی

د تقوی لو یې خبر ې کمې ز یـا تـې
هغه و ا ړه شوې ز ما په تند ی ما تې
بډه نه و ه د ا و ه دا شو ه ر ا ته پېښه
وا قعې سو د و سو دا شو ه ر ا ته پیښه
جمعه زړه مې تر مې ترمې لکه غو خت شو
تو ند تو سن مې لکه خر په خټه بو خت شو
چه دعشق د مې خا نې شر ا ب یې نو ش کړ
د شعو ر لا و نعم یـې فـر ا مو ش کـړ
غـلبـه و ر بـا نـد ې هسې محبت شـو
چه تما م له عقله و وت محبت ( ۱ ) شو
عا قبت یې د ا قصه تـر قا ضـی لا ړ ه
ز ړ ه ز خمه د حا ل بو یه ماضی لاړه
چـه لبیك ا ی حضر ت قـا ضـی لبیك
مـا لـك سند حـجت شـو هـم عـلـیك
تا و یشتلی غشی بور ته په تا لك شـو
هم دې لو ښی د نمك ، له میو ږ ك شو

۱ـ په (پ) نسخه کښې ( په محنت شو ) ر ا غلی د ی .

یعنی و شوه هسې چار لـه محتسبه
لـه منصبه د دنـد هـې نـا منا سـبـه
ز نا حقه یې په عیب ګان معیوب کړ
او بدنامی یې وکښېنګان یې پرې دوب کړ
هغه دم یې دم د رحال په څه بانه
ګــانـه وبــا لـه لـه عقله بېګانـه
وی یې ولی ای بې ننګه بې فرهنګه
چه شیشه دې د عصمت و یشته له سنګه
هیڅ دې نه کړ ده له خدا یه حیا شرم
چه دې مات کړ په هوا د تقوا د زم
داڅه عقل دی چه لاندې تر جنون شو؟
داڅه دین دی چه د کفر (۱) رهنمون شو؟
نه پوهېږم چه دې قید که دې مړ کړم؟
یا دې مخ په تو لعنت په خاورو خړ کړم؟
وی یې ای ددین قبلې څه خو انصاف کړه
ګستاخی د التماس راته معاف کړه

۱ ــ په (پ) او (ع) نسخو کښې (فسق) را غلی دی

په پر هر مې ما لګه مه دوړوه ږ پرې
د ا زږل چا رې بـه نشي تېر و بېر ې
که دا ستا دخدای له حکمه سره جنګ دی
ز ما اس له دغه جنګه په پښو لنګ دی
که مې دين و آئين لاړ ،لاړ شه خو شخوړ يه
او س له کړو سره د خدای څه کړی بو يه؟
که ور پرېښ په ځېر ز ما په څه با نه شې
ته به هم په هغې شمعې پر و ا نـه شې
که يو ځل له هغه مخه ، مخ ا ستر شې
ته به هم ز ما په څېر خر ا ب او تر شې
که يو ځل در با ندې تورې ستر ګې سرې کا
سرې لمبې به دې د قهر مړې ا پرې که
په پنجه يې د مږ ګـا نـو ر و ی کسی
له ګو ګلله د شېر ا نو ز ړ ه ر ا نيسی
که دې نه کيږ ی با ور په د ې خبر ې
و ر شه و ا ز ميه نه د ی شـا هد لـر ې
خود بـه وو يني ز مـا ر ښتيا د ر و غ
چه له مخه يې ز خمی ر ا شې که ر و غ

نا د یده و هې او س لا فې د سیالـی
که یې و وینې روغ راشې، سیال هاله یې

چه څه وایې واوه ښه و ایې ګرم نه یې

چه محرم د هغه مـخ د حـرم نـه یـې

زما عذر به هاله در تـه ښکاره شی
که یې مخ تر د پواله در ته ښکاره شی
له فریاده داور سوی زده او ر سوی

چه زما په څېر یې زړه له سوزه چوی

په ازل چه د قاضی نـه وه قـضـا

دغه جنګ ته یې کښی نه ښو وه رضا

وا قـعـی یـې محتسب مبتلا و لـیـد
مبتلا یـې پـه عـظـیمه بـلا و لید

چه یې و او ښته په زړه د قهر زهر

په دا شور یې کړ خبر حاکم د شهر
چه په ښهر کښی پیدا هسی فتنه شوه

چه له سره د دین شرعه پسته شوه

من وعن یې ورته حال وو ایه و روره

د شا هد د محتسب له شر و شـو ر ه

و ا خست بحر د عصمت هسې شو ر ش .
چه مو ند ه نه شی گو در د سفا ر ش
د هغه (۱) په خدمت ناست پـلار د عزيز ؤ
ا ينبیده په ما جـرا غـو ږ د تميز ؤ
نه يې ځا ی د د م و هلو ليده پلا ر ته
نه يې موم دزړه نيوه شو د غه نا ر ته
يشپد ه لکه پو خ د پگ هسې خو له پټه
د ا ظهـا ر ژ بـه يـې و خته تـر ځـټه
لايې او ر دغم تا ز ه د خسو خـا ر کـړ
د ې کو سر يې هلك زخم لو ی پر هار کړ
دم در حال ور با ند ې لا غلبه شو ق شو
څو چنده له هغه حاله فوق الفوق شو
چه پرو ن يې او ر يد ه تشه نا مه شو ه
نن تو د ه په هغو ميو هنگـا مه شو ه
لا ړ شو کا ر د گفتگو ی له جستجو ی
را غی حرف د جستجو ی تر تگو پو ی

۱ ــ په (پ) نسخه کښې (هغه وقت به خدمت) راغلی دی .

چه قاضی هغه کاوش ور پسی ډېر کړ

په شکوه یې نیشکر ز هر ګنلی پر کړ

په غندلو پسې غندل کـا د سـرو ګلو

خنلی و خار ترکچه فهم د بلبلو

په پو کل یې یو بخری سره لمبه کړ

حقیقت یې د شاهد اورو پو مبه (۱) کړ

له حاکمه یې حاصل د کار جلب کړ

دم در حال یې دشاهد حضور طلب کړ

هغه وخت د هغه ښهر یو کوتوال ؤ

چه آزار ته د لېوه په څېر لېوال ؤ

تر هېډه یې د یـو و د د لـه نـا کسیه

شر هېډه یې د رنـده لـه نـا ترسیه

وا بسته یې لـه نـا حقو وا بسته وو

لکه دی هسې له حقو وارسته وو

مسلط په هغه کار هغه نا کس شو

ناګهان د هغو مستوستر ګوخس شو

---

(۱) - په (۱) نسخه کښې دا کلمه دا سې ده (لیدنه)

ناز نین (۱) لکه آ هو په سپیو ګیر شو
د سرو ګلو تر خر منه اور چاپېر شو

هر یوه ته سوك په ستر ګو مږه ژاړه
د هر سپی په پښو پر یو ځله امن غواړه

که هر څو یې دز اری په پېشه کړه پېشه
هیڅ یې نه مونده زړه سوی له بد اندیشه

نه یې آه په چا اثر کاوه نه ا وښـو
آه فر یاد د نا تر سې له بدولو ښـو

غر یبی په غـر یب کشو ا ثر نه کا
څو یې خدای پخپله تور ه ۶ بر نه کا

نه نا کس د چا په او ښو انفعا ل کا
نه په بت با ندې ا ثر آ ب ز لا ل کا

ځه ز ده د یو د فر ښتې له شـر ا فته
کشا فت نـه کـا الفت لـه لطا فـتـه

چه شا هد یې تر جا ل لا ندې لکه صید شو
د صیا د لـه تـر حمه نـا ا مـیـد شـو

دم قا ، یې د زا ری ټا لا ش پر ېښو
دغو نچې په څېر یې سر په ز انو کېښو

(۱) په (پ) نسخه کښې (نا ګهان) دی ٠

لا علاج یې په دا جبر و کړ صبر
په خو له پټه و ر پد ه د ژ مې ا بر
که هر څو به یې ځان و نغښت غو نچه طو ر
بیا به ګل غو ندې پر یشان کړ باد د جو ر
هر سا عت به لور الور شو پر یر و ی
هغه سپې له بې شر مې لکه ر و ی
که یې ملو نو په رشوت چا ته مخ پو ټی
د غو نچې په څېر یې نیو د ز ر و مو ټی
چه په ز ړه و ې د فلک نو رې کا نې
نه حیلې په کا ر کېد لې نه بـا نې
عا قبت هغه شـو خ چشم سنګد لا نـو
بې حیا ؤ، بې و فـا ؤ، نـا ا هـلا نـو
په سختۍ د شا هدلا س په ګر یوان کړ
و حاکم ته یې روان سروی روان کړ
هر قد م د خد ای په لارې د لاو ر ته
په خپل آ ب کښې لکه لعل شناو ر ته
جلوه ګر چه په چار سو تر ند آ هو شو
تما م ښهر په ها هو ور پسی هو شو

هر سړی به یې د حسن پهلیده
لکه موم د عشق په اور و یلی کېده

د هر چا چه به نظر د ده په مخ شو
بې اختیاره به یې زړه پسې تخ مخ شو

هر پلو چه به یې و اړ ولې ستر ګې
اور به بل شو د پر هېز په لو ند ې در ګې

هر قدم یې چول زړونه د د لبر و
په مثال لکه د انې د پخو کور و

نر و ښځې د دې جنګ په عبث ګوا ښ
ځا نه ځان ګو تې چیچه د افسوس غا ښ

چه حا ضر د عد ا لت په ا نجمن شو
لا یې زړ ونو ته و سکه حسن (۱) چمن شو

د مجلس په دا یره کښې چه روان شو
ځای په ځای یې صبوری مشت و ګر یوان شو

چه لمبې (۲) به یې د مخ چا ته رسد کړ
قد سیا نو به ا یـا ك و ا لا سد کـړ

---

۱ ـ دا مصرع په (پ) او (ع) نسخو کښې داسې ده: (لا یې حسن په و ښکه دز ړه چمن شو)

(۲) د (۱) په نسخه د (لمبې) په ځای (جذ بې) را غلی ده.

هسې او ریې فتنه گرو ستر گو بل کړ
چه عا لم یې په لمبو سر ه جل بل کړ
چه یې تو ره پر ی د مخ کړه ایم کښو
د قا ضي دامیر زړه پر ښوت تر ېښو
شوه په زړه د هر یوه ښکا لو دمیني
ورته ښو ی شوې د دواړ ودزړه سپیني
په ا میر د آر ا م محکمه شو ه تو د ه
په قـا ضي د محتسب کـا نـه کېد ه
بارې خلاص یې نعو ذ باللهمنها کړه
هم لا حو ل و لا قـو ة ر هـا کـړ ه
و قا ضي ته ا میر و و یل خو شخو یه
ز ر له ښهر ه د ا فتنه و یستلې بو یه
گڼه اوس به په جادو د تورو ستر گو
پورې اور کا زما ستاددین په در گو
هغه دم یې په زنا کام ویوست له ښهر ه
پته مینه د عز یز لا ړ ه تـر جـهـر ه
دزړه زخم یې تر خو لې سر ایت وکړ
د سکو ت ښهی (۱) یې دا کفا یت وکړ
په لیدو د اوریدو با لقوه چا ر ې
یو په یو ورته با لفعل شوې دو مجاري

---

۱ ــ په (۱) نسخه کښې (با نې) دا خلی دی .

د ر شتی په څېر له غمه پېچ و تاب شو
په طلب د هغه در په ا ضطر ا ب شو

چه يې مات کړ اشتیا ق د شر م د ر م

په تا لاش د یا ر دو صل شو سر ګر م
نور يې و اخسته په څېرې ګر یوان د له

په بلند آ و ا ز د یا ر د عشق بـد له

په لید و يې یو راز دار پسی روان کړ

ور سره يې مصدق څېرې ګر یوان کړ

د ا پیغا م يې و ر ته و کړ ز با نـې
مشتمل پـه ر نګا ر نګ مهر با نـې
چه ز ما هغه سا عت د پلار له شر مه

تر خو له نه و ته خبر ه نر مه ګر مه
بل د ستا د مخ په مینه هسې مست وم

چه حر ام شه که خبر له نیست و هست وم

اوس ر ا جار وځه بېر ته مهر بان شه

لکه روح په آب و ګل زما تا بان شه

پس له دې دې هو د ه ما ته رسید لې

که په تا د چا جا مـې و بلو سپد لـې

نه به تا سره قاضی حا کم کاوش کا

نه به و چولی و تا و ته څوك ګرش کا

واك د ښهر د ښهر یار واړه د ستا

د ښو بد وا ختیار واړه د ستا
پا د شاهی کوه په تخت د کامرانی

غو ر رسی کوه زما د ویرانی

د ا پیغام چه دشاهد د غوړو درشو
په شکست کښې پیر ، په پیر دبها درشو

لکه اور هسې راوګرځېده پس

بیا یې مخ و نیو په سوه د باقی خس

شو روشر په ښهر ګلو شو پستنه

چه عزیز تللي فتنه کړه راستنه

باري چا ددې فتنې کاوش کاوه شو

خواه ناخواه ور باندي چا سرپري کاوه شو
کشمکش د یوه زور نه شو سا هه چا

په دوه زوره باندې ځان کله واهه چا



## مجلس کول دعزیز له شاهد سره
### اووصف دشاهد دحسن

بله شپه چه ځای په ځای دسپوږمۍ شمعې

بلې کړې وې و ځا نته هرې جمعې

په رڼا یې د جما ل ور ځې کینه کړه

هر سا عت یې بلو ا یی په آد ینه کړه

هغه شپه هغه عز یز په ز ړه کوټلی

محبت صـبـر آ ر ام ځنې لـو ټـلـی

په امید دیا ر دو صل مجلس جوړ کړ

آ ب و تاب یې دارم پکښې نچوړ کړ

له نظر ه د ا غیا ر پټ غـړ پـد لـی

د اخلاص په آب وتاب سره وړ پدلی

چه حاضر شوودمجلس یاران همزولی

د عز یز ما تم ز د ه د غم په غـو لی

هغې شمعې ته ؤ ز ړ ه د هـر یـو ه

منتظر لـکه پتنګک د ځـا ن پـه سوه

هر احد نا ست ؤ شهید دشوق په تو ره

بـې خبر د صبر ز هد لـه د ستو ر ه

و شاهد ته یې پیغام د راتلو وکړ
په خور نکه یې اکرام د راتلو وکړ

تمامی اهل مجلس به یې په ځله
په هر دم د راتلو لار کتله څو ځله

نه په ستر ګو کښې نګاه سهیده ، ووت
نه په زړه کښې سوی آه سهېده ، ووت

ناګهان هغه قا صد هد هد نشان
د بلقیس د راتلو زیری ته پر پشان

بشارت یې په سکر و تو د مشتاقو
قطره زن شو لکه او ښېد عشاقو

په پیغام یې د شاهد د رسېد لو
نو بهار کړ د و یلو او رپد لو

جلوه ګرچه یې د مخ قریب جوار شو
په آمد آمد ګو یا درود د بهار شو

هسې شان یې جلوه ګر د حسن نور شو
چه ښکاره په قصر بام طیور دطور شو

لا پر زړونه ځا نه ځان د هغې جمعې
پتنګان په استقبال د هغې شمعې

لاپې کړې نه وې دوې ودرې نغمې
د رستی ا یښې په سینه دشوق تغمې
چه شاهدشوورښکاره هسې خوشحال شو
بې پروا د غیر و زیر له جنجال شو
هر قدم د صبر ز هد په مغزی ږده
و پهلو ته د شعور تېره اغزی ږده
راغی تو ند دبرق په څېر و ښکلې توره
محض مرګ ارو ز ما ډیك له فتوره
که هر څو ورته نیوه په خوله وا ښه
لا یې ځا ن لکه لمبه را ته ګوا ښه
چه مې نه وه لا قضا ر ب و سا تلم
ګڼه هر ګوزار یې مرګ اروهلم
چه یې را کړه یو څو زخمه په سینه
پستنه مې شوه له زړه څخه کینه
عا قبت یې بند یوا ن د عشق په ځیل
دایم را ته ستم تر تا په د غه کیل
اوس دستار ضا قضا زما لا لنده
که مې وژ نې که کوې د عشق پا لنه

محبت مې دې و غا ړې ته کو لنډشو
بله خو ا مې ستا له مخه قد م لنډ شو

پر و انه مې شو د ز ړ ه د پر نه پا تې
ستا د مخ په ډ یو ه سو ې کا ږ ما تې

په خا طر مې ستا دعشق له شوره شره
دی قا یم په هر ه سا هز ا ر محشره
هر سا عت د ې د قا مت په ا قـا مـت
له ما غو بنت حساب کتاب شی دقیامت

نادیده دې د جمال په خیال ګیاشوم
په لید ودې پر وا نه په اور جلیاشوم
هر چه کړ ې د ستا رسوه دعزیز غاړه
سر کښې د ځا نخو ښی را څخه لاړه
هر چه شوه د ستا په عشق کښې ر ا ته پېښه
غاړه ا یښې له دې پېښې نشته تېښه (۱)

صلوات واړه ګذ شته آ ینده واو ره
مختصر داد و فر یا د د بند ه واو ره
هو اره کړه همر اهی د د ې کو تږو
د ر پیه نشی پـه لـړ کښـې د مشکږو

۱ ـ د (تېښته) مخفف دی او په دې بیت کښې د پښتو د ې متل ته اشا ر ه شو ې د ه چه : ( له پیښې تېښته نشته )

له دې قوم سره نه ښا يی قر بت ستا
بويه تاغو ندې ښه‌خلق په صحبت ستا

له د يو ا نو سر ه څه د فر شتې
چه به زيست کوی دد وی په سر شتې

(۱) په غونچه کښې به د ز ړ ه زما ېتا
په مثا ل د ګل د بو ی سا تمه تا

سر و مال د ې و ې ز ما ستا په چمبه
هسې ا يښی لکه خس په سر ه لمبه

که يې خدای کا هيڅ پر و اله هيڅه بابه
په‌زړه‌مه‌درومه‌خوشحال اوسه‌خوش آ به

چه شا هد په د ا نغمه مترنه شو
ا لتما س ته د عز يز متو جه شو

که په خوله يې ورته ښه نه کړ ه له شرمه
د قبو ل جلوه يې ټله له مخه ګر مه

وا خست ر نګک د ا جا بت د د ه د عا
مشر ف يې شو ا ميد په مد عا

(۱) ۱ - په (پ) او (ع) نسخو کښې دغه شپږ بيتو نه نشته خو د
نسخې په حاشيه کښې په کمزوری خط ليکل شوی دی .

## پریشانیدل دمجلس په راته دورځې
## او فریاد دعزیز په شان دوریځې

چه تاریکې صبحدم دشپې ډیوې کړې

د شفق میو ښکاره خپلې جلوې کړې

په دا رنګ هغه عزیز په مینه مست

له میدانه د ژوندون وړی شکست

په لمبه د محبت موټی ایرې

کړو تللی د غمو نو په ګیرې

حسب حال وایی په شانې دوېر ژلی

هغه سوی غمز ده په زړه ور ژلی

ربه دا څه پېچو تاب شو را ته پېښ

چه په ما باندې یې کېښو د اپا دېښ

دا خدنګ دې دی د کوم لنډې لیندې

چه یې وسپړ دې زما د زړه پردې

داد کومې میخانې ګرم شراب دی

چه مې هسې عقل هوش باندې خراب دی

هیڅ مې نه زده څه تاثیر لری دامی

چه هم رنګ مې هم رونق کړ دزړه طی

نه پوهیږم چه داد رد په څه نمای دی

چه یې زه خاورې ایرې کړم دی په ځای دی

نه پوهیږم داد کوم سرود نغمه ده

چه یې اینبې په شعور زما نغمه ده

نه پوهیږم چه په کوم ګناه نیوه شم

چه کباب غوندې په اور کښې دایم سوه شم

د ه و یلې په د ار نګک دو یر و ینا

چه شاهد شو ورښکاره لکه بر پښنا

هره خواته چه دستر ګو التفات کړی

باندې نوی د ضرور باره وفات کړی

سل فتنې د غمز ې بیا یې په جلب کښې

دم قدم دخون ر یزې په طلب کښې

چه قیامت یې په رکاب کښې د قامت شو

له ر ا تلو یې ځکه شورد قیامت شو

د کبروورو ځو لینده په لاس بر کښه

کا ږ ه غشې د مژ ګا نوسم په نښه

په دوو ستر ګو، کینه ګر لکه مزری

د پر هېز په مړ نیو و ږ ی بر ی

په سروشو لمبو آتش با را ورلګوونی
دزاهد د لند وو چو و ښو سووني

په شو خی د شوخۍ ښهر شکن
په کمند کښې د کا کلو شېرا فګن

هر اند ام د ګل اند ام په خپل خرام
ما تا وه د هر محرم د حج احرام

په رخسار بله دیوه پروانه سوزه
په کا ته د سا مری سحر آموزه

د م قد م به یې د حسن په لمبه
سنګین زړونه هسې سوه لکه پومبه

په دا هسې طمطراق راغی نژدې
د قا ضی په بزن بزن په دې دې

سرو قد چه د عزیز په خاطر داشت
سم قامت په سلام خم کړ لکه میاشت

په مشتاقو یې اختر کړ د ښادۍ
الوداع یې کړ د روژه د نا مرادۍ

په ادب یې د بد بخته عزیز
ور ولاړ شو مات په زړه دمینې خریز

په هزار مهر بانۍ ترې قربانی شو
جان فشان دیارد زړه په پاسبانی شو
تمامی اهل مجلس په سل دانش
ورته و کړه په تعظیم هزار کورنش
دغه پسه یې ډیوه دا نجمن کړ
او ریې پور ې په ګلونو دچمن کړ
تبسم یې کېښو سم دګل په ستر ګړ
یایې اور ولګاوه دنیې په درګو
یا یې ما لګې دوړو لې په پر هر
یا یې وو ړ له مخه آب ددر ګوهر
هیڅ مې نه زده چه جوهر ؤ که عرض ؤ
جلوه ګر له هغې خولې په څه غرض ؤ
د حیا نظر بازی شوه هسې ګرمه
چه نرګس پورته کتی نه شو له شرمه
په خوله لاس دخاموشی کېښو کتو
هر ګز نه مو ند له حرف لاردو تو
هسی ګرم شورو شرد لپو نتوب شو
چه محشر له دله هیر لکه هیر خوب شو

چه یې مست تما م مجلس په ننداره شو
بې اختیاره دافر یاد ځنې ښکاره شو
څو یې بلې لمبې کښېنا ستې په جو ش
دیا قوت د اور په څېر هسې خا موش
دې پیالې اره کباب، رقص، سماع دی
د قیامت کښېنا سته محض اختراع دی
هغه شو خ په او رېد و د.د ې نغمې
د آ ر ا م په سینه کښېښو و ې تغمې
په خندا له ځا یه هسك لکه لمبه شو
د م قدم پورې درقص په پومبه شو
هر اند ام د موم اند ا م په نخېد ه
لکه موم د ا و ر له تا به ځخېد ه
هسې تاوده دزنګو شر نګهار کړ
چه یې غو ږ د شیخ ملا په هنګها ر کړ
هر ساعت به یې زاهد دلاس له چېر ه
پاس په مخ باندې خو ږه توده څپېر ه
چه به څرخ واهه نګار دز ړه په سندې
لا به تیز کړ هغه اور با د د لمنې

کښیښنا ستو یې کښیښنو ل سل آ فتو نـه

پا څیډ و یې پا څول سل قیامتونه

هسې شان به په نښا کښې دست افشان شو

چه زهري څخه به جمعه شان پریشان شو

کله تـر پـلـه لکه بـر ق پـه یو ه فج

کـلـه و د ر ه لکه خـا بش د ګلو کج

(۱) په هنر دپا کو یې چه آغاز ګیت که

مسکین زړه لکه دانه د کو ر و چیت کړ

کلـه کښیـنه کښیښنو ه بـلا پـه زړ ه

کله پـا څـه پـا څـو ه د لحـد میږ ه

هسې رنګ به په ( ۲ ) نښالوڅن کوتر شو

چه به فکر د پر ی و ر ته ا و تر شو

چـه به مخ د ګل بد ن شو عر ق پا ش

له بلبلو به ګل با نګک شو د شا بـا ش

چه په څرخ کښې به او ده لکه غونچه لاړ

لکه ګل هسې بـه خـو ر پچه پچه لاړ

---

۱ ـ په نسخه کښې دا بیت نشته او په (پ) او (ع) نسخو کښې داغلی دی.

۲ ـ د(نښا لو څن کو تر) په ځا ی په (پ) او (ع) نسخو کښې (په نښلو نر کو تر) داغلی دی.

په هر رنگ چه به مطرب غږا وه تار

بې تکلیفه یې اېوه چېړ اووتار

شو به تیز لکه له ګلو ږ کړه څانگه

په نڅا د شا بش شا بش له ګل با نګه

چه یې و کېښ داودی آواز له حلقه

وسوسه به د سکون لاړه له خلقه

له او بو به شو د عقل جریان پاتې

له مرغانو به د دین شو طیران پاتې

رګ ورا ګ یې درندی په رګ ورا ګ کړ (۱)

تاخت وباخت یې تخت وبخت دصبر ټوا ګ کړ

همې شان یې اثر ناك داؤد دی حلق ؤ

چه ګویا کې د علی د تور ی بلق ؤ

لګاوه یې د م قدم لکه ققنس

دمجلس په ځا له اور په هر نفس

چه یې خلق په خرام سره لوټ پوټ کړ

په خنجر یې د نغمو جهان کټ کوټ کړ

(۱) په (پ) او (ع) نسخو کښې (شو) دی.

چه عزیز له دې علاج لا بتر شو
درست دشرم له پرده ووت او تر شو
فریادی غوندې داب و ادب پریښو
د دادی په څیر یې لاس په لمن کیښو
وې یې ای دمرګک له خولې و تلیه ګفته
دو ښکلی تیغ په څیر له فتنو جفته
په روش د خپلو ستر ګو کینه ګره
په دستور د خپلو کسو فتنه ګره
په شیوه د نادر حسن ښا پیری ی
په جلوه د صبر زهد لو ټیری ی
څو به ته لکه پرکار چورلی را باندې
څو به زه لکه نقطه سر شم در لا ندی
څو به ته کړ وهی غمزی د نغمو
څو به زړه زما و باسی تر آغمو
څو به ته د مهر نــا ز لــه تبسمه
غرور سم لاندې کوې تر خپله سمه
بس که کښینه دکینې تور ه پکښې کړه
په لمیو زما، درحم باران کښې کړه

بس کړه مه کوه په نوروکړې لوبه
مبارک دې شه زما د قتل سوبه
(۱) راشه کښېنه ته قصه د پتنګ واوره
هنګهار دخپل شمشیر دخوږ ننګ وآوره
راشه کښېنه و اوره حال دخپل ویشتلي
چه یې تادی څو تو بری له زړه و یستلي
یکه تاز حسن دې هسې په ما خیز کړ
چه لښکر مې یې د عقل په ګړ یز کړ
که هر څو مې په زاری د عقل پښې
نیولې، نه و دریده لاړ دحان په ښې
په رښتیا چه ستا دجنګه آهنګ ولاړ شو
قابو چې عقل قابو ته کاته لاړ شو
که هر څو راسره مل ننګ و ناموس شو
دتنګۍ په وخت جدا را څخه بېروس شو
چه مې څوک و کومکی ددین راغلي
واړه لاشو وله هیبته د ستا غلي
بې فریاده که یې هیڅ نشي له لاسه
چه (۲) مې نیسی دآه سپر په سرد پاسه

۱ - دا بیت په (۱) نسخه کښې نشته.
۲ - په (پ) او (ع) نسخو کښې د (څومې نسی) دی.

بې له او ښو چه مې دی په غم لوټ پوټ
دم په دم یې را کړا وه داو بو ګوټ

ژړا یت چه بیچا ره لکه مر ده شوم
ښوی سپینی ور ته زه په ځان پر ده شوم

را غی سر ې جا مې ا غو ستې لکه ګل
مهر با ن په د لا سه د خپل ګا یل

په ګلګون لباس کښی را غی هسې شا ن
لکه آ ب د ګل له ګلله د ر خشا ن

هر پلو به یې له عکسه د مخ د له
د یا قو ت د آ ب و تا ب جلو ه کید له

سر تر پا یه لکه مهر شفق پو ش ؤ
د ګیسو له تو ر ه شا مه هم آ غو ش ؤ

آ تشي جا مې(۱) آ غو ستې لمبه طو ر
په تا لاش د سمند ر د حا ل د غو ر

چه بیتا به که عز یز د و صل ځلې
ا و ر یې پو ر ې شو د شر م په خځلې

---

په (۱) نسخه کښې (نمری) دی.

دا یره د تحمل شوه با ندې تنګه
دا د ب شیشه یې وو یشته له سنګه

و ې یې ای زما د زړه د باغ میوې
په زیارت د خپل شهید بلې ډیوې

څو به ته لکه آهو له ما تر هیږې
څو به زه دا خون خورګی کوم پوهیږی

راشه نوره بې رحمې راسره مه کړه
د خپل عشق په څیر مې ځای په زړه کښې و کړه

پس (۱) له دې زه تاب نه لرمه را م شه
خبردار زما د مینې په ا حرام شه

جذ بو دې دخواهش په هسې رنګ کړم
چه یې سر (۲) دځان په سوه لکه پتنګ کړم

چه شاهد په آه فریاد دعزیز ځیر شو
له دې تا په لکه موم اثر پذیر شو

۱ ـ دا مصرع د (۲) نسخې په حاشیه کښې داسې لیکل شوی ده:
(پس کهمه کوه ناسازی راته رام شه)

(۲) ٤٦ (پ) او (ع) نخو کښې د (خیر) کلمه راغلی ده.

په سینه یې ور ته لاس د قبول کېښو

کبر و ناز یې د ښا یست په مهر پرېښو

عرض و حال یې همه وا ړه و ما نه

پرې یې ښو په خاطر کښې څه ما نه

و لې هلته یو رقیب د ده هم غاړی

ناست ؤ دیو غوندې بد شکله بلا غواړی

په زبان لکه مقراض و یز ار وو نکی

په بدخوی لکه لړم از ار و و نکی

بد شکو نه بد نمون و چو لی غو ټه

تر یو و تر یخ لکه زقوم دغم له ګو ټه

د جها ن بلا جفاوې په سل غوړې

د سړی په شا نې شکل سره جوړې

که په خواب کښې در ښکا ره (۱) دده شبیه شی

وا یه دیو ځنې خجل شیطان تنبیه شی

په هزار حیلې دشرعې مو افق کړی

تر قدم پورې حلال دامنافق کړی

وې یې ستر ګې دو ښکو خوله د ګنډلو

په بل رنګه نه ؤ رنګ د کښېمنلو

---

۱ - (درښکاره) (ورښکاره) دی

بلکې نه یې ؤ بې وژلو بل علاج

چه یې ښه کړی په کښتن رسم ورواج

ځه به ښه و وکه په درد حبیبا نو

زرغون مه وای خنلو خار درقیبانو

په دا گنج با ندې پروت مه وای دا طلسم

باری مو ندنه شی داقسم په بل قسم

چه یې پوه هغه کم بخت په رابطه شو

د حیا له ضابطې بې ضابطه شو

له غصې سره سور شین شو لکه زهر

په شاهد باندې غږ (۱) پلېده په قهر

وې یې ای اور لگو و نیه پا څه بس کړه

هواره اهل هوس لکه لوندخس کړه

لکه اوښې دمجلس له ستر ګو و ځه

بل کړه اورد بوالهوس سړی په دروزه

چه یې لاس دنا چاریه په ګر یوان شو

بېچا ره چه چاره نه لیده روان شو

---

۱ ـ د (ع) په نسخه کښې غږ بلېده دی .

په عزیز شوې دفراق مړې خولې ماتې
لکه بې روحه کالبوت شو حیران پاتې
په خوله پټه یشپېده لکه پوخ دیګ
رژ پېده یې دژوندون له مخه رینګ
سره مړی په ارمان لاس دا میډ
چه بې خلاص شو له کمنده انبټي صید
سپلا بو نه یې داو بنو ځه له ستر ګو
لګاوه یې اور او بو دتن په درګو
چه له ډېره غمه زړه ورځخه (۱) ورغښت
دلیچن په دوډیې کړ سره کور (۲) مښت
داو ینا و ایه له ځانه سره ورو ورو
لړزوه ځمکه آسمان سره په وروورو
ربه څه مې د ې د بخت مزی نری کړ
چه ګیدړ د ې په کشتن زما مزری کړ
هر یو سپی را باندې مېږې پښه که پورته
هر سفله مې لکه موم نیسی واورته

۱ ـ په (٤) نسخه کښې (له تنه) راغلی دی .
۲ ـ په (ع) نسخه کښې (ګور مښت) راغلی دی .

محبت کړم او ښ با ر ی په پوز ه نته

د هر چا د ظلم با ر و ړ م بې منته

د هیچا را څخه نه شی و یر ه شر م

په آزار مې هیڅوك نه دی نر م کړم

که مې بدې کس ونا کس په سر قدم

له خوارۍ ور ته وهلا ی نه شم دم

و ا قعی د ما شی مچ له بڼها ر ه

خطر ه خور م د مز ر ی له تڼهار ه

عا شقی کړم هسی شان په ز ړه نری

چه ښکار یږی را ته سپی عینی مزری

را پیښې کړی عاشقی هسی جنجال دی

چه مجال پکښې زما دچو لا جال دی

که یې زه کړ م په هز ار خوارۍ ساز

بیا یې و شلو ی په ماد مچ پر و از

څه امید زما دعشق په بندوبست دی

چه مې هسی په بانه دبخت شکست دی

آ ه له بده تور ه بخته چه زما دی

دریغ له دې عمر ضا یعه چه زما دی

سیده ستر ګی نه وی سپړدي په ګلزار ما
بیا خوړلي پکښې زخم وی د خار ما

سیده سر را غلی نه وی د ښا د ګه
بیا و هلی وی په لیه د بید ا ر ګه

سیده نه یم له یو ه غمه په ښو
بیا اخته شم د بل غم په خر خښو

وایه دا د ویر وینا ده د و یر ژ لی
باندي ژاړی یار اشنا په زړه ورژلی

چه فلك پکښې خلل د تز و یر ګلو کړ
وسند رو نه تول شوی په و یر ګلو کړ

را شه، راشه ای سا قی ابر نیسا نه
په دو ه جامه ز ما ګر انه کړ ه آسا نه

تر هو لی سپی رقیب غزاله رام کړه
بیا یې زر زما وخواته په خرام کړه



## قصه اوربېدل دشاهد او ترحم پيداکېدل دده د عزيز پر حال او په وعده خوشحالېدل دهغه

دعاشق توري طالع څه خوو بر ښه
ګو ندي وکه باندي يار د مهر پېښه

ښايي اوس که غمزده اسوده کيږي
د جهان فتني ځملي اوده کيږي

بر ندي سترګي يې زما دخوب وړي کړي
خوب په تيکی کښې د غم تيري چړې کړي

سپی رقيب له غېبها ري په قرار شو
د مينو منکر بخت په حق اقرار شو

قصه خوان ددي قصې چه قصه وايي
په دار نګی له خرواره موتی نمايي

په شاهد چه غلبه دخوب آشوب شو
په پهلو يې منور بستر د خوب شو

په پالنګ لکه خرمن د ګلو پر پروت
که لو ګري په چمن د ګلو پر پروت

د غونچې په څېر يې ځان په شالو ونغښت
دهماي په څېر يې بخت په بالو ونغښت

تن یې ښکلی د لارام شو دځادر خپل
غېږ یې ورته تا رو نه د بستر خپل

یو ه یا رو ر ته کـړه د ا قصـه
چه یې وژله پرې د ده دخوب غصه

په کنعا ن کښې د خو بیه یو پا د شا ه ؤ
چه په مصر کښې دحسن یوسف جاه ؤ

د ز ا هد په صـبر ز هد په تا را ج ؤ
ا چو لې یې د نمر پـه سـر خـر ا ج ؤ

په ر کاب کښې یې د حسن څو فتنې تلې
په جلب کښې یې د مخ هز ار کینې تلې

په شکست کښې یې دز لفو سل بـر ی وو
ور ته ایل حلقه بګوش دد ین مزری وو

دغمز ې په تېره تیغ یې ز ړو نه سکښته
عا لـمـو نـه یـې د عقـل سـر ه نغښته

یـو ګـد ا ی پـه جـما ل مین فـد ا ؤ
چه یې ز ړ ه د د ه په عشق سر ه اشا ؤ

ګد ا ی څه ؤ چه د مینې له ر مـو ز ه
سر تر پـا ی سر ه لمبه ؤ شنه لړ و زه

هر ساعت د عشق په اور کښې لو لپه

دم قدم په خپل ژوندون پورې خپه

نهایت د عشق په کار کښې تت وزری

د ایرو په بستر پروت لکه بخری

شاه له شرمه له حیا لکه آهو

له عالمه د شو خیه تللی په هو

ګدای یو موټی ایرې دعشق په اور

ګر یوان څیرې په پښې پېل سر سر تور

شاه په دار ننګ شوکت په نزاکت کښې

او ګدای په دې شدت د فلاکت کښې

له دې هو مره تفاوت سره لا لنه

د واړو پت د محبت سره پالنه

نه شاه ننګ له ګدایۍ د ګدای کړ

نه ګدای نظر په سوری دهمای کړ

د اقصه یې له اوله تر آخره

یو په یو ورته بیا نه کړه وفا خره

چه تر غو ږه د شاهد دغه نغمه شوه

بعد ملاشه یې د عزیزو په زړه تغمه شوه

وې يې زه هم يومحتاج لرم داهسې
چه يې زه په عشق تا راج لرم داهسې
زما هم په دا د ستو رسوی مين شته
په دار نگ مې په ديدن پسې غمجن شته
په څه يوه زما د حسن پروانه دی
د جنون ځنځير په غاړه د پوانه دی
سرو مال زما د مخ په لمبه بس
لکه خس هسې سيځی په هر نفس
په پيا له زما د مينې هسې مست دی
چه هردم د ننگ و شرم په شکست دی
ځان جهان زما په يا دور څخه هېر دی
ذ کر فکر يې زما تر ژ ه چا پېر دی
له ده د اعجز و نيا ز تمنا گوره
له ما د ا کبر د ماغ ا ستغنا گوره
دا کوم طوردی، کوم پت، کوم مروت دی
دا کوم عدل، کوم انصاف، کوم فتوت دی
له راستی به يې څه راو شی گوره
که مې نه کا په نيکی بدی د ر گوره

مې باید چه په اخلاص ور سره یار شم

بې پروا له بده پنده د اغیار شم

چه څوك مری هغه دې ومری له دې وویه

(۱) پند و بست د آشنا یې سا تلی بو یه

هغه د م یې دامنگیر مهرو کرم شو

دا رو ګر د خپل و پښتلی تر حرم شو

ور حاضر په هسې ساز (۲) په هسې نا ز شو

چه سهیل آشنا ګډ ا ز ا شنا نو ا ز شو

په یوه لمبه یې د پنګ د تر حم

کړ ښکا ره په شو ږلو جو ش د تبسم

د زړه لعل د عشق سا ز په تر حم کښې

خوله په مهر عذ ر خوا ه په تبسم کښې

د اغیا ر و له مجلسه لا س په غو ږ

شماره ځا ن. د یا ر د هیڅې په د ر و ږ

۱ ـ دا مصرع په (پ نسخه) کښې دا سې ده ( په دولت د آشنا

سا تلی بو یه )

۲ ـ په (پ) نسخه کښې (شا ذ) او (ع) نسخه کښې (شان) راغلی دی

چه یې دم ور با ندې ه پر د مهر پو کړ
بې رحمۍ شلو لی زخم یې رفو کړ
وې یې ای دخپل شا میت په بلا ګیره
آینده مه کړه وسواس تېره په هېره
له دې پسه له اغیار و تو به تو به
چه دې غوښته مبارك دې شه داسو به
پس له دې مې رضا ایښی په رضا ستا
مسلمه په هر باب رضا قضا ستا
په هرڅه چه دستا زړه دلاسه کیږی
زه به یې کړم که مې څه له لاسه کیږی
که مې اور په سر بلیږی لکه شمعه
په وصال مې کړه له هجره خاطر جمعه
چه پرې پورې دا مرهم په دا عنوان شو
د عزیز دزړه خو نا ب هسې روان شو
وې یې واشه ای زما د زړه ه یو ې (۱)
چه دې نمر کړ شر منده د مخ و ږ مې

---

۱ - په (پ) او (ع) نسخو کښې د (دزړه دمې) ه صورت دی

دل سوزی دې او سه ملله په حال زما
ترحم دې شه شمله په حال زما
هیر دې مه شه په وی وی زما زړه سوی
بلکه وه دې په وی وی زما وی وی
وپرانه زما بې تامه شه ای ګنج
تل مې او سه مشغولا ستا په شطرنج
زندګی مې صدقه ستا تر قدم شه
ستا له دمه را کښې پو دژو ندون دم شه
راشه کښېنه لکه روح زما په خوا کښې
مه خوره نور رابا ندې زهر په حلوا کښې
ما مضی بلا جفا وا ړه در ګوره
پس له دې مې په هجران مه وژنه ګوره
استوار او سه په قول په قرار خپل
د اغیار په نغو ته مه قتلوه یار خپل
چه شا هد له بېګا نه ؤ بېګا نه شو
له عزیز سره یك لخته یګا نه شو
غم اندوه یې دزړه لاړ ورك شو زلزل
بیا یې نحس غم آ با دد یار منزل

له خسته یې د یا ر ا نو کړ م بیا ن څه
په اوبو د سترګو لاس وینځم عیان څه
هر یو ه له جد ا یۍ نه د خو ش ر نګ
مخ و سر و ا هـه په ځا ی د دفو چنګ
ځا نه ځان ما تم ز د ه په ز ړ ه و ر ژ لی
ګـلو په و یـر د بیلتا نـه د و یـر ژ لـی
چه یې و شلید ه په شمعه د ز ړ ه طمعه
تار په تار لاړه خو ره شو ه هغه جمعه
په خو له پټه غږ ید ه له غمه ز نګ
کېښو سر په ز نګنو نو دف و چنګ
بې شکسته بل آ واز له هېڅه سا ز ه
او ر ید ه په غو ږو نه شو دل نوازه
څه اثرلر ی د عشق خو بې خبر ي
چر ته و یر کا ندی بر پا ی چر ته سندر ي
په یو ه نغمه کښې هسې شا ن پیدا کا
چه با عث څو ك په ژړا څوك په خندا کا
نیر نګیـ ته یې تغیر دعقل ر نګ دی
ا فلاطون یې له پلمې پښو څو په ر نګ دی

## ګوزران کول دشاهد عزیز سره اومال دولتؤعزیز
ورکول وشاهد اوبېل ځای سازول

ښه دی بد نه دی دا طور دد ې دو ر

چه په جو ر پسې کـا ا لبته غـو ر

نه یک لخته په چا ظلم کا، نه داد کا

کله هغه کله د ا په خپل معنا د کا

چه عز یز دد لارام له ر مه ر ا م شو

په هوس سره یې ما تد غم احرام شو

(۱) چه همای با ندې د بخت سا یه افګن شو

غم ابا د یې مقرر د یا ر مسکن شو

چه همای با ندې د بخت سا یه ګستر شو

د امید لعل یې روښن په خاکستر شو

و ې یې شکر د ی قا د ر ه بر کما له

په کرم سره د خو ږ و ز ړ و دسما له

چه اخرمې دې د بخت له غم خوا رې

ګډ په ستر ګو کښې را نجه کړ د خوا رې

غم آ باد مې دمسکن د ز ړ ه آرام کړ

ر میده آ هو د ې بیا و ما ته رام کړ

---

۱ـ د (پ) نسخه کښې د (بخت ـ یار) کلمو په ځای د (غم) کلمه راغلې ده .

رڼا کړي هغې شمعې زما کور دی
چه یې پور ې د سپوږمۍ په حسن پور (۱) دی
که مې څوك بختور بولي نن یې درنګ دی
چه دا هسې مې نر حور نیولی څنګ دی
نن مې هسې آب و تاب د انجمن دی
چه خجل ترې د ارم باغ و چمن دی
پس له دې ګفتګوی بالقوه چارې
له عزیزه شوې بالفعل رادوڅارې
که یې سیم وو که یې زر که درګوهر وو
که یې نقد که یې جنس که څه دیګر وو
تمامې یې له مخزنه رابهر سې کړه
په هدیه یې تر نظره د یار تېر کړه
بیا یې سر کېښو په پښو د ګل بدن
تېره تېغ د قتل ایښی په ګردن
وې یې وا خله دامې سر د غه مې مال دی
چه مې ایښی شکرانه ستا د جمال دی

۱ ـ په (پ) نسخه کښې (نور) دی ۰

ماهم ز د ه چه داپه سر په ما ل خبر ې
نـهایت لـه لا یقته د ی سـتـا لـر ې
که دې ځار کړ مځان جهان واړ ترسره
پـه د ا خسپر عـذ ر نـه لـر م د لبر ه
نو رمې هیڅ نه شته په کور کښې دهستې
خد ای خبر دی ، بې راستۍ بې دزستی
که هر څو د ه و ا قعی بې ا د بـی د ا
ته قبو ل کړ ه زمـا د ا غـر یـبـی د ا
آ ینی ته ستا د مخ چه نو ر څه نه وی
بو یه یو مو ټی ا یر ې تحفه د سو ی (۱)
که مې سر په تنه پو ر ې که جد ا د ی
ز ما لا س ځنې ختلی ستا دی ستا د ی
که مې دا بساط په ز ړ ه شی مسلم ستا
د نو ر چا نه د ی ز مـا د ی دم قدم ستا
ز ه د ستا شو م ته ز ما شو ې د ا تما م
پکښې مه ر ا و ړ ه بل حر ف په دا تمام

---

(۱) به (۱) نسخه کښی د سوی به ځان (ښوی) لیکل شوی دی

که مدام را سره بخت دا هسې یار وی
چه مې یار را سره یار غلمی اغیار وی
په دا باب دې وی زما شکر دا ری
هزار محله په درګاه د پاك باری
باری نه شی دا امید زما له بخته
چه یك لخته کا آسانه زما سخته
په څو محلل یې په دار ننګه تر دې پخوا
له کمره ده وهلې زما خوا
همیشه دا نارو اپه مارو اګا
له مینه مې په نیمه (۱) خوا جدا ګا
سر و پای را ته فلك وا غوست په نور
که یې بیا زما په وینو نه که سور
زه پوهېږم څر با وه شم په دا شین
لکه پسه خلا لو لو لره عین
همیشه را ته په ښه کښې رسی بده
مګر دا محله مې خدای کړه بلا رده

۱ ــ په (پ) او (ع) نسخو کښې (سوی) دی .

چه شا هد ته د عز یز صد ق معلو م شو

سنګین ز ړ ه یې په لمبه د مهر مو م شو

په پېشکش با ندې یې لاس دقبو ل کېښو

څو یې ز ړه هو مره واخست نو ر یې پر ېښو

د غه پسه یې یو ځا ی جنت نشا ن

هغه حو ر لره تیا ر کړ په ښه شا ن

آ ینه غو نـد ې صفا پسـه صفو ت

لکه ز ړ ه هسې ګو ښه ګو ښه خلوت

لکه ګنج هسې پنهم (۱) له بېګا نه و و

منو ر په د م قد م د یګا نـه و و

کړ ی هـر نفس نګا ر پـه د لبر ی

ځا نه ځا ن جلو ه ښیو ه دښا پېر ی

له آ ر امه یې ا ر م خو ړ لې ر م ؤ

د ښا یست په آ ب و تا ب جنت حر م ؤ

لا چه حسن د شا هد شو پکښې شمعه

ز یا تې لا ز یب و ز ینت شو پکښې جمعه

---

۱ ـ د (۱) نسخه په حا شیه کښې د پنهم کلمه دا سې اصلاح شوې ده : ( له خلقو ) ۰

له څو کسو محرمانو سره د اله
هلته وا خسته عزیز د راز بدله
توره شپه به یې په عیش ورځ کوله
سپینه ورځ به یې په آه دریغ کوله
په دنیا کښې یې روزی حور و قصور شو
برطرف یې له خاطره هر قصور شو
راشه و ګوره ساقی زما خلوت ته
منور د یار په مخ لکه جنت ته
راکړه می چه کو نهی پټ له اغیاره
چه په خواب اوده فتنه نه شی بیداره



## خبر یدل دعزیز دده له مینې اوویستل دشاهد له

شهره وتل دعزیز ورپسی اودپلار پښېمانېدل

څه ارشاد کاندی سهی صاحب ارشاد نن؟

دا په کار د عاشقۍ کښې استاد نن

د هر چا چه محبت په زړه کښې جوش کا

په دا فکر یې بل فکر فراموش کا

له او له دې چاره او خلی صاحبه

پرې دې پرې کاد غما زو بده ژ بـه

د هغه پسه دې شاهد نزدې تر خوا کا

ګڼه څان به د عزیز په څېر رسوا کا

که عزیز له غما زانو و پر پده ده پر

لکه طفل له خپلو او ښو لږ ز پده ده پر

دا په دا چه چیر ې نه له یوه ځـا یـه

فتنه پا څې خر خشه کا نـد ی بر پـا یه

که کېده یې د هر چا له و یاره وېره

باری شوه یې څو چند ه له پلا ره ډېره

په هزار پر دو یې پټ سا ته اسرار خپل

په دا کار کښې یې اغیار ګانه د یوار خپل

باري پټ کله سا ته د میني راز شي
بې و هلو له د غه تاره آواز شي

که هر څو یې پټوې لا څر ګند یږي
جز ایل چه و اخلي اور کله پټیږي

څوك چه راز دمیني پټ له خلقه غواړي
په پوه مبه کښې به بخري(۱)د برق نغاړي

چه دعشق داو بنو څا څکې پر ده څاڅي
در نجو لـه ګرده شو رد محشر پاڅي

لـکـه مشك هسې کـا بـوی د لټو لـو
لا کوی خـو د نما یي له پټو لـو

څو یې ته پرې احتیاط کوې په ستر
هو مره اخلي محبت دشهرت و تر

بنیي څان با نګك بلند له خاموشیه
تازه کیږي لکه اور له خس پوشیه

مینه نه اوسی د عقل په چمبه کښې
پټ سا ته نه شي بخری په پومبه کښې

(۱) دا مصرع په (پ) او (ع) نسخو کښې داسې ده:
(په پومبه کښې به پټ برق بیهوده نغاړی)

په هنر دعشق ناموس کله پټیږی

نور د شمعې په فانوس کله پټیږی

پټول یې لټول دی په معنی کښې

دمول (۱) یې اوږدول دی په معنی کښې

داو ینا واوره په غوږ کو تا ه غټه

هیڅ مین مینه سـا تلې نـه ده پټه

که پنځه ورځې پټه کا په حلق کښې

په شپږ مه ورځ څرګنده شی په خلق کښې

عشق و مشك نه شی ساته پټ و پنهان

دا خبره ده مشهوره په جهان

چه عزیز د رازاګر (۲) په آتش کېښو

لاعلاج لوګی یې بوی دعنبر پر ېښو

په دارنګ یې شوه پرده داسرار څیرې

په بازار دمینې راشه که غم پېرې

یوه ورځې همزانو شوق ددیدار شو

د ور خه نازو نیاز ګرم ګفتار شو

---

۱ - په (۱) نسخه کښې (د موهل) دا غلې دی .

۲ - (اګر) هندی لغت دی دعو د په معنی .

عشق سوال کاوه په شان د خاموشۍ
حسن کړ ور ته جواب د بې هوشۍ

سوال جواب سره په هسې داب آداب شول
چه ګستاخ ویل له میانه په حجاب شول

بېګا نه ګفت و شنفت د عبارت شو
د بوسې داد و ګرفت په اشارت شو

که هر څو یې د رواز ه د غم په مخ
وه تړلې د خلوت په هزار سخ

ولې راز یې غیب الغیب خلل پذیر شو
څوک نا کس یې داسرار په نغمه ګیر شو

له ویلو سپهدی نه شو ترق چاود
بر نا حق له احمقیه احمق چاود

هغه دم په یوه دم اور لګو نی
د عزیز تر پلاره لاړ هغه بدغونی

وې یې پا څه دا خبره ازمود ه کړه
دخپل زوی له احواله خبر زده کړه
چه په مینه د میګون حسن خراب شو
په آتش د آتشی شونډو کباب شو

هـم خـلو ت لـر ی هغه شـو خ بنگتیا

چه قا ضی له د ه فر یا د کا و ه په تا

په خلو ت کښې یې له خلقه پټ سا تی

لکه ګنج هسې په ټ پـر ه ا حتیا طـی

لـه ا غیا ر ه یـې سـا تـی پـه هسې قسم

چه ګو یا کـی هغه ګنج شو دی طلسم

شپه و ر ځ و ر سر ه کا شطر نج د مینې

د شعو ر له قید ه و یو ست ر نځ د مینې

نقـد و جنس یـې هـغـه و ا ړ ه غلنی

پـه مـجـمـر د د ه د مـخ کـړ سپلنی

جا د و چشم با نـد ې و کړ هسې مکر

چه بې د ه یې نه بل ذ کر شته نـه فکر

نو ر څه نه وینی په ستر ګو چه دی وینی

کو ر و کلی بې د ه و ا ړه پر دی و ینی

په قیام که په سجو د که په ر کوع دی

و محرا ب ته یې د ور و مخو په رجوع دی

په ټ یو ه یې د جما ل پـه هر پـر تـو

پر و ا نه په سر و ما ل د ی و ر ته د و

که یو څو ورځې نو رهم په دغه پت لاړه
ګڼه داچه همدې زوی همدېدولت لاړه
وا قعی ځنې لاس پر ې وینځه پـه صبر
بېر ته نه ر ا ځی هر ګز مـړ ی د قبر
چه یې څه دروغ ر ښتیا پهخوله را تله
له و یلو یې هر ګز نه نېو ه خو له
په پو کلو یـې بڅر ی لمبه ا و ر کـا
څویې پورې د عز یز د ز ړ ه پهکور کا
چه یې ټ پر و چو لا ند ه کړ ه سره ضم
د فتنې ا و ر یې آ خر بل کړ په د م
لکه د یکک هسې یې تو دد عز یز پلار کړ
دغضب جوش‌و خر وش یې‌ترې‌اظهار کړ
دسړ ی شیطان‌سړی‌دی ترې هراس کړه
یا د آ یا ت د من الجنته والنا س کړ ه
د کینې ، غصې لښکر په هجو م ټو ل شو
یك منت د نا ز نین په غو لې غو ل شو

هغـه دم آه افسـوس سـره لاس مښـو
یوه بل ته دنـا حـق تـا ختونـه ښـو
دحـسرت ګوتې په غابش کړې هنـدوګبر
وې یې ګوری دابې جرمـه جور جبر
چه دغه سړی په خو له څوك از اریږی
دیر دوپه حرکت خپل ویز اریږی
دا فلك چه نا ترسی و نـاکردې کـا
چه به خلق دپردې اوس بې پردې کا
لا به کا دا بې شرمی ګوره ترګو مه
دا ګند ا به یې زغمی ګوره ترګو مه
قصه دا چه په شهل د شـا هـد فـوج
هـقـرر شـو عـا قـبـت د قهر مـو ج
هغه وخت عزیز او ده ګو ښه په خوب ؤ
نا خبره دی په تا خت د دې آشو ب ؤ
چه شا هد یې لکه ښه دستـه د ګلو
دا رم له با غه و یو ست په منګلو
لکه سپی ګوره چا پهر تر غز اله شوو
چه په اصل رذ ا له و و رذا له شـو و

په شتا ب يې لکه بر ق و يو ست له نبهره
دقيا مت غو غا و لا ړ ه شو ه له د هر ه
چه عز يز له خو به و لو يد ه خبر شو
په خبر د يا ر دغم زير و ز بر شو
د خپل پلا ر د بې رحمۍ له رموزه
سر تر پا يه سر هلمبه شو شنه ړ و وز ه
د اد ب سو ز و گدا ز يې د ا منگير شو
لا علا ج د نه کړ و چار و و ته خير شو
گاه به جنگ ته د خپل پلار شو لاس په توره
چه د ا صر ف بو څم د قتل تـر فتو ر ه
گاه به خير د ځان په وژلو شو له سوخته
ها د ی سو د د محبت له خر يد فرو خته
عا قبت د يـا ر د هجر لـه تـا و کبنه
دا خير ه شو ه په زړه کښې د ده خو ښه
چه ديار په مرسته څه پا څه ځان ورك کړه
دغه درو ند نام و نشان تر سپيو سپك کړه
هغه دم له ځا يه هسك دوړه په زور شو
لکه گرد هسې ر و ان د يا ر په لو ر شو

هـو اره چه یې الفت د هغه پـلار کړ
لاس ئیو لی لپو نتوب سیده په لار کړ
په طلب د تللی یـار پـه هسې پېر لاړ
چه په تله کښې یوقدم ترمجنون تېر لاړ
په صحرا د ر سو ائی ر سـو ا یـی شو
په سو دا د عا شقی سـو د ا یـی شـو
ابرو یی د دانش اورې که نه اورې ؟
محبت کړ د مجنو ن د کو څې خا ورې
چه خبر په خر ا بی د ز و ی پلا ر شـو
د آ هو نـو د لښکر سپه سـا لا ر شـو
ته یې سیند دسپینو او ښو په مخ بـا نـدې
کړه یې زړه دغم غبار ترسیا هی لاندې
د فـرز نـد دبیلتا نـه لـه پـېچو تـا بـه
تاوېـده لـکه و یـښته داور لـه تا بـه
یوسـاعت با ندې آرام دزړه حـرام شو
ما تېدو ته یـې نژدې دزوند احـرام شـو
د م د ر حا ل یې یو څو کسه د ل پسند
وا ستو ل په ر ا و ستل د خپل فر ز ند

په دانش کښې هر يو جو نګړ د عقل پنځه

په اثر کښې شخوند دهر يوه په خوند

و لې وا ړه ه بېګا نه و و ، نه و وا هل

مشکل کار يې په لاس واخست آسان سهل

يو ه درد د محبت نه ؤ را ښکلی

نه يې جا م د بېلتا نه ؤ چر ې څښلی

بې خبر د جا د و چشمو له ا ثر ه

يو ځای شوی وو ګو يا ځو د ر د سره

با وجود د د ې نقصا ن چه مې بيا ن کړ

و عزيز ته يې آغا ز د پند د ا ستا ن کړ

په يو کلو يې سکر و ټې سړ و لې

په پر هر باندې يې ما لګې د و ړ و لې

(۱) هسې شا ن يې پورې کړ د پند مښود

لکه مست هو ښيا ر وی ځوك په سر و د

له و يـلو يـې هـنګا م د نـه مـنـلو

لا شو تېر تر حد حـد و د ه د زغملو

---

۱ ـ دا بيت په (ع) نسخه کښې نشته ٠

دا جواب ور ته عزیز د تیغ په ژبه
له داوده کړ اداز ماصاحبه

چه لار ونیسیٔ احمقو بیر ته د رومیٔ
دم قدم د شرمنده ګي زهر شومیٔ

ګنه و به وهم اوس ګردن د واړو
بېهوده په رنګ هوار په عقل لواړو

چه اثر نه کاوه حرق د خود فروشو
لکه توره د لرګو په یختو (۱) پوشو

په هوا په بیر ته لاړه د زاغو سیل
تش تور بوس یې کړ د حال ور ته غلبیل

(۲) ددې حال له اوریدو هغه یعقوب
د یوسف له بېرې ځلې شو میزوب

دافسوس شونډې یې غوڅې کړې په غابنو
هم یې وشلېده رفو د زړه د ترابنو

---

۱ ـ امکان لری چه د (بختر پوشو) عبارات چه په دلا بو اړه و نسخو کښې هم داسې راغلی دی په اصل کښې (بخمل پوشو) وی .

۲ ـ په (پبه) نسخه کښې دا مصرع داسې ده : ( دده حال له اوریده هغه یعقوب ) .

را شه راشه ای ساقی با قی می راوړه
په دا با ب د محتسب خبره ما وره
یوه بله پیا له هم د میو را کړه
د خو دی له خرخشو مې تېر ا کړه



## قاصد لیږل په‌عزیز پسې دپلار اوقسم نامه‌غوښتل

دعزیز دپلاره چه منع مې مه‌که‌له‌دې کاره

راشه حال دسینه سوی یعقوب واوره

د یوسف د خو د رأیو اسلوب واوره

پلار د زوی د جدایی په‌ماتم کیر شو

له علا چه یې حمت و مرګک ته تېر شو

په‌راز د و به یې ز حمت لا غلبه شو

په ا و بو به یې بخر ی شنه لمبه شو

نهایت چه په دا درد کښې بېچار ه شو

سلا جو یه له خو کسو د و با ر ه شو

هر احد لکه غو نچه په‌زړه پر پشان ؤ

هر یوه ځخه په سو و د شمعې شان ؤ

واړه یو محله آغا ز ې کړ ې خبر ې

هر یوه کړ ه در و ا ز ه د فکر ار ې

مو ا فق له خپلې پـو هـې هر یـو ه

پـه نیو ه د هـغه صید مـخ و نـیو ه

په دې واړو کښې یو ښه دیرینه مرد ؤ

چه د مینې په صحر ا افتاده ګر د ؤ

هم پرې تېره وه دمېنې ګرمه سرده

لکه اوښې پر ورده د زړه له درده

د هر زړه د بېتا بۍ په رنګ پوه وُ

د هر رنځ د خرابۍ په رنګ پوه وُ

رېو ګر د خوږو زړونو د پرهار وُ

پوه په رنځ د هر بیمار په هنګهار وُ

په دا رنګ هغه حکیم پوه په مزاج

له مزاجه موافق و ښو د علاج

چه شاهد ته یو پخته قاصدراهی کړه

ور په لاس دخپل تقصیر عذر خواهی کړه

چه دا در کاندی په غوښتا د زاریه

دی جدا شو البته له ناچاریه

خود به رایشی عزیز پسې کوز ګوری

وړاندې ورستو یو څنګک بل څنګک لکه سیوری

که همدمه هم قدم وی په دې څه شو

که په غم وی که بې غم وی په دې څه شو

هغه پیر د ځان په ویر په دا ګفته

هسې شان شو لکه صبح شګفته

هغه د م یې یو نو کر فر خند ه پـی
مقر ر په د ا خد مت کړ پیا پی

په مضمو ن یې دپیغام سراسر پوه کړ
غوښ یې څو کړوه منزل لکه یو کړوه کړ

هسې شا ن و ر پسې ر ا غی په تلو ا ر
چه یې دواړه ر سو ا و نیو ه په لا ر

پس له عرضه د سلام قا صد بې در نګه
و شا هد و ته پیغا م و کړ د ا ر نګه

ای په مخ دهر ښا یست د جمع شمع
او بې تا تو ر ه تیاره ده په دې جمع

له غارته دې جهان هم بېغا ر ت دی
اشارت دې ا ثر نا ك تر عبا ر ت دی

جلوه گاه دې دجمال هسې جلوه کا
چه هر سنګ دیې له یوسف سره دعوه کا

د ستا مې چه تا په مینه د ی نو مړ ی
دموج تیغ یې دی کاری زخمو نه کړی

نوم مې واوریده دستا لاړم بې خوده
نه مې خوب شی نه خندا لاړم بې خوده

تعجب مې د دې میـو پـه ا ثـر شی
چه یې پلار په خښبه دزوی مست او تر شی

ستا له غمـه د ا بلا شوه را و لاړه
چه همسا مې د پیر ی له لا سه لاړه

چه مې نه پیژ انده هاله دوصـل قد ر
ښه چه اوس په جدایۍ شوم هسې جدر

تر قیا مته مې پخوا و لیده قیـا مت
خښو م په شو نډو غا ښ د ندا مت

تیر تقصیر را ته معاف کړه مهر آموزه
پس له دې توبه په خوله رسیږ په پو زه

هر چه کړې هغه کوه اختیار در کړی
ستا په لاس ز ماد وا ك در سیږ پړ ی

د کرم په او بو مړ د غضب ا و ر کړه
بیر ته وجارو څه سخ زما په کور کړه

تر فرزند به دې و نه ګو رم کوز د له
د ی عز یز زما یوه ستر ګه ته بله

نو ر مې مه ا ز ار و ه را شـه لا لنه
په بخښنل د توبه ګار اوس کړه پا لنه

را شه را و له زما تللي ښادي
زړ مې ورسه په داد و پهدادي

راشه راکړه روښنایي زما دسترګو
بې تا نه شته بینایي زما د سترګو

رسېدلی دې لهغمه پهزړه چوي یم
دغصې طاقت مې نهشته دزړه سوی یم

کهاله پرده نشین دګنج په څېر دی
دخلوت پهدایره کښې نقطه ګېر دی

اوس افتاب غوندې ښهر په ښهر بریښنه
چه دې زړه په هغه سیمه کوه پېښنه

چه رواج فراموشي ده دخوبانو
هېر دل دود و دستور دی دبتانو

تههم ای دکبر ناز په مې مدهوشه
خطایي زما خسته کړه فراموشه

عاقبت یې نمك پاش د تکلم
ترحم شو جلوه ګر له تبسم

چه یې زړه مهربانی مهربان کړ
داجواب ورته شاهد پخپل زبان کړ

(۱) ای چه ځای د هر کمال لری پیغام ستا
مر تبه دې شه جزا په د اا قدا م ستا

هغه پیر که په ظاهر یم زه یاد کړی
په باطن یې دا جواب دی بل ته کړ ی

که یې واخست زما نوم څه شو هوښیاره
د ه پیلی د ی د ا ها ر د بل د پا ر ه

چه هر ګز سر ه اشنا نه یو نیك نوم
کا د ا هو مر ه شفقت په ما له کو م

نو ر څوك نه بو لی خپل زوی په ګو ته (۲) بو لی
دادی ناست خودی و پوښته څه بو لی

که را ضی زما په تله وی د ل خسته
ځم د ز لفو په ځنځیر غا ړ ه بسته

بې د د ه له سلا ز ه په کو مه خو له
کړ م سلا دخو د ر ا یې په خپله تله

۱- دا بیت په (۱) نسخه کښې ته‌دی راغلی او په ( پ-ع ) نسخو کښې شته.

۲ - په (پ) او (ع) نسخو کښې ( په کته بو لی ) راغلی دی.

هر چه ده په د غه باب در کړ جو اب
هم هغه ز ما جو اب د ی با صو ا ب
چه تما مه يې نغمه کړ ه بې در شتۍ
کړ عز یز ځنې معلو م کار د ا شتۍ
لاعلاج يې دامذ کور وا خست په ژ به
وې يې وا ور ه اې ز ماسهی صا حبه
تل د ې وه د صلحی و ر لر ې په مخ
هم د ې برق وهه په مخ تو ر ه د سخ
پلا ر مې هسې نا کر ده د ه په ما کړ ې
چه به نه وی په دښمن با ندې چا کړ ې
پر ده در د عیب جو یۍ چه پرده دار شی
پلار له زویه بې اعتبار، زوی له پلار شی
تسلی پسه د ا و ینا نـه د ه د کـړ و
په د ا نه د د ام و یسا نه د ه د کړ و
د ا پیغا م د نا صبو ر نا شکیب د ی
مو یو ځه زده چه راستی کاکه فریب دی
که ز مو ږ له تعهد ه و جا ر و ز ی
دو با ره به په غم تا و شی لکه مز ی

مه ستېږه په آش کښې د دې زا ړه

یو په ست نښه ایسې او بل په نه خوا ړه

که رښتیا یې بېدادی وی له زړه تللې

مهر داد یې، وی کینه له سینې وللې

دی به را ستوی قوی (۱)قسم نا مه

مشتمله د ا خـلا ص په هنګا مـه

چه قاصد دمیا رك په جواب پوه شو

لکه باد له باره سپك د غم اندوه شو

در اتلو زېږی په خوله بهر ته روان شو

څو چنده تر باده تېز په لار روان شو

یو په یو بې اور ید لی ورته وا ړه

واو رول چه هسې وايی هغه دوا ړه

راشه راو ړه ساقی می بې در شتیه

محتسب له جنګه ر ا غی په آ شتیه

مستانه می داحسان په یوه جام کړه

بې آرامه زړه می څه خو په آرام کړه

(۱) په (۱) نسخه کښې محکم د ی ۰

## قسم نامه استول په عزیز پسی دپلار او راتله‌ددوی

په هغه اعتبار او مکتب ته دشاهد استول .

دعاشق چه بخت بید ار طالع د بنو شی
رقیبان یې لاس په غوږوله خړ خښوشی
بد خواهان یې خیر خواه رقیب رو یبا رشی
وسیله یې دیار وصل ته ا غیا رشی
و ایې و ا ستو له ز ر پلا ر د عز یز
په دار نګک قسم نا مه صا حب تمیز
ای د عشق په ډیووسو یو پتنګا نو
په دوهه د هینې نا ستو ملنګا نو!
چه راوړی مې په عشق تاز ه ایما ن دی
غور ځولی مې له زړه شك وګمان دی
ما هم کېښو وه رضا په دا وینا او س
بې ا نکـا ر ه ا منا و صـد قنا ا و س
لکه و ی هسې یار ان او سیءِ را ځیءِ
د یوی سوړې ماران او سیءِ ر ا ځیءِ
راز وناز کوی ءِ راځیءِ بې له ا غیاره
همځا نه سره خو ښی کویءِ بې و یاره

تا سی دو اړه زما ستر ګې لېمه یا سته
پس له دې نه ، زما غاړه ستاسو بیاسته
چه موزړه هغه څه کاږی ء(۱) اختیار ستاسې
زما نه ، حکم د ښهر و د یار ستاسې
د غایب شاهد په حسن لا یزال بو و
د رښتینې محبت په ښه انزال بو و
دعا شق د خستګۍ په تمنا بو و
دخو با نو د خو بۍ په استغنا بو و
په نارو په فریاد ونو دبلبل بو و
په وړه وړه خندا دتازه ګل بو و
په ځان سوځی بې رحمی دڅپو و بو و
د پتنګک د ځان د سو لو په لمبو بو و
دهجران د نیم بسمل په اضطراب بو و
د وصال د منتظر په پیچ و تاب بو و
د بهار د تازه ګلو په معراج بو و
د خزان د نا ترسۍ په تاراج بو و
د یتیم د ګرمو او ښو په ګداز بو و
د بېکس و بېچاره په سوز و ساز بو و
په سامان د تور و ستر ګو په سپاه بو و
په نا حقه قتلول د بې ګناه بو و

۱ــ د کوی ء یا کړیء بله لهجه د ه ه

د غمجنو زړو په آه آتشبار ړو
د بې غمو د خو ښۍ په اعتبار ړو
په ډېر سهم د اول ځلې قربت ړو
د بوسې دا لتماس په ډېر هیبت ړو
د سر وستر ګو د غمزې په تېره تېغ ړو
د سر بازو عاشقانو په نادر پېغ ړو
د زنخ و د غبغب په ژور چاه ړو
چه ورپرېوځی د هغه یوسف په چاه ړو
د ویشتلی دز ګېروی په هنګهار ړو
د فراق له غرېوه(۱) ډکه زړه په اظهار ړو
د فرهاد د محبت په محکمی ړو
د شیر ینې د غرور په بې رحمی ړو
د ساقی د ترحم په تبسم ړو
د شیشې د قلقلې په تکلم ړو
د نو خط د خال و خط په احتشام ړو
د غریب و مسافر په صبح وشام ړو
په خواره واره دستار د سروې قد ړو
په کاږه واږه رفتار د سروی قد ړو

۱ — په (پ) نسخه کښې ( د فراق له غرېبه ډک )

د سر و ستر ګو پلنګا نو په پنجه ږ و
د خون خوارو آدم خورو په سکنجه ږو

په شب خون د آهو منو د فر یادږو
په افسون دجا د و چشمود فسادږو

دیعقو ب د بېلتا نه په تاءسف ږ و

په خو ار یو په ښا دیو دیوسف ږو

د بې صبر ۍ ز لیخا پـه تمنا ږ و
دیو سف د صبو ر ی په استغنا ږو
د مجنو ن دعا شقۍ په ز ر بلا ږ و
د لیلی د نـا یا بـۍ پـه ا بتلا ږ و

په سهی مینې د هیر و د را نجا ږو

په ر ا ستۍ د وا مق و د عذ را ږ و

په رښتینی محبت د نل و د من ږ و

په خطا بت پر ستۍ د بر همن ږ و

د آدم د درخا نۍ په پاك بازیه ږو
د بې ننګه مېر ما مې په بې نیا زیه (۱) ږو

په تو بهٔ د ګنا هګا رو د تقصیر ږو
په بینه د ښه خدای عذر پذ یر ږ و

---

(۱) به (۱) نسخه کښې (بی نما زیه) دی ・

چه هر گز کړي وعده نه کړ م خلاف
ر ښتیا وا یم په در وغه نه ده لاف

چه مو زړه هغه هوا هغه هوس کړیٔ
خور ونیان په دم قدم ز ما جوس کړیٔ

چه و ینامې د نا کس د نفس نغو تې
د ار مان په غا ښ مې و چیچلې ګو تې

چه مې کړی خود کرده په ځان فسا ددی
هر چه شومه ښه چه شوم دامې اهداد دی

په هغه کفر بې شکه یم پښېما ن ا و س
په تازه دین و ایما ن غواړم امان اوس

بسکه ډ پر لتا ړ پتاړ د غم په سم شو م
دل سو ز ی بو یه په ما د تر حم شو م

پس له دې مې ر و ا دار په آ زار مه شیٔ
په مر د ه با ندې ګا هك (۱) د ګو ز ار مه شېٔ

جګې جګې په لید ه د خط را پا څیٔ
په و چ حلق لکه ز لال زما و څا څیٔ

(۱)- ګا هك غو ښتو نکی.

چه رقم قسم نامه په دا مضمون شوه
ژ به و چه د قلم په دا افسون شوه
قاصد واخسته نامه سر شو په لار
یا نظر یا برق یا باد شو په تلوار
جلوه گر د بـې مقامو په مقام شو
امانت یې په لاس ورکړ په آرام شو
چه عزیز مطالعه د پلار مکتوب کړ
مسلم یې په زړه صدق د یعقوب کړ
هغه دم یې مجرد د خط په لوستو
راروان شو شاهدو پر اندې دی دورستو
استقبال لره یې خلق د درست ښهر
هسې راغله لکه سیند (۱) پـه لهر لهر
هغه واړه لکه ستوری په قیام شول
هغه نمر هغه سپوږمۍ ته په سلام شول
چه له و رایه یې کړ خیرې په ستاره سر
د بابنې دوړو ستر گو په نظر

(۱) په (۱) نسخه دغه بیت هم داغلی دی چه په (ب) او (ع) نسخو کښې نشته:
استقبال لره یې خلك تمام ووت په تمام ز یب وز ینت په هنگام ووت

چه په بد نظر و تا سې ته کا ته کـا
دهغو ستر گو نصیب دې خدای و اته کا

خدای مومه را کوه غم همېشه ژوی
زه دې هم نه وم ژوندی چه تا سې نه وی ه

چه قدم یې په جو ار دد یدار کېښو
دواړو لاس په قد مونو دپلار کېښو

چه ادا یې کـړه د پښو نیو ه ا د ب
ده په خوا کښې دواړه و نیوه عجب

نمر سپوږمۍ ګویا دننه په خپل برج شوو
یا دوه لعله امانت خوندی په درج شوو

چه جلو ې یې دجمال شو ې بلې بلې
په فانوس کښې د آغوش ډیوې شو ې بلې

هغه وخت ؤ هغې غېږې ظاهر سپړی
د با د ام دوه مغز ه مثا ل راو ړی

دلاسه خو شامد کړه په دشا هد شوه
لږې غوټه له ابر و یه دشا هد شوه

مخ یې ښکل په دواړه لوریه کړ نما نځلو
بد خواهانو ته یې بخت شو په ښکنځلو

چه نغمه شوه هغه وخت داخلاص ګرمه
پکښې ځای دلباس نه کېده له شرمه
لا علاج له منځه ووت کنارره شو
لکه ؤ هسې بې د خپل کنار ه شو
په د یار د یقین هسې اما نی شوه
چه تر ې ورکه دفتور بدګمانی شوه
نیک نیتی شوه په سینه کښې هسې مېخه
چه یې وتې (۱) د کینې ټول و ښکه له بېخه
چه حاصل یې له دې بابه اعتبار شو
د دانش په میخانه کښې ګوهر بار شو
د هر سوال یې له شاهده جواب بیاموند
فهم فکر یې د زړه په صواب بیاموند
د زړه دریې د کرم په تار سفته شو
و عزیز و ته ګویا په د ا ګفته شو
دا هلک لکه په حسن کښې یکتا دی
هسې رنګ په دانایي کښې بې همتا دی
که یې ته مین د مخ په بار یکې یې
زه یې را ښکوم د زړه په ځیر کې یې

---

۱ - په (ع) نسخه کښې (بېخ) د اغلی دی.

مې بـا يـد چه معلم ته سپر ده شی
لکه روح هسې په علم پروردہ شی
چه يې و لګېد په غوږ دپلار له پنده
دا وینا يې کړه عزيز په زړه پسند ه
وې يې ښه وايې صاحب عمر دې ډېر شه
لا دې زړه په غم خواری د خوارو ګیر شه
ځی مکتب ته هغه طفل پريزادن
نوی مرګ يې مبارک شه داستاد ن
په څه شان به يې شهید دمخ په تيغ کا
په څه رنګ به يې څور نګ ګوره بې دريغ کا
چه يې دا پری پیکر ناست په مکتب وی
شپه و ورځ به يې استاد سر په يارب وی
معلم که يې پـه قطع افـلاطون وی
په اول سبق به سروپ لکه مجنون وی
څوک به ووايي پيغام زما اخون ته
چه سرونيسه دغـم و شوا خون ته
وينم زه دما غی سرستا پنج و خته
د شا هـد د ببد ا د ی د مشق تخته
و شا هد و ته عزيز پـه بـلا يـا د
دا رنګ کښېنو د مکتب د تلو بنياد

وی یې ای زما زړه د کور ډیوې
په چمن کښې مې د عمر ګـل مړوې

پس له دې که په خاطر ستا څه را دروې
طبعیت مې سره موی ملال نه مومې

سکه د علم په طلب مکتب نشین شی
باطن هم لکه ظاهر هسې مهین شې

له همز و لیو د قدم قدم هوا هوس کړې
د بلا له نحسه صاف د زړه جوس کړې

چرې نه چه دې په زړه له غیره خیا له
ملالې د انګیرې را شی زما لاله

مدعا یې ور بیان په هسې شان کـړه
چه یې خوښه په خاطر کښې د جانان کړه

د مکتب په لور روان سـروې روان شو
له قدمه یې روان آب حیوان شو

مکتب څه چه ؤ مجمع د پریزادو
ښادیده به پکښې زړونه د ناښادو

سل کنعانه یې د حسن غلامانو و
ترحم یې سل ارم و چ بیابانو و

په یوه اسمان کښې سل نمر ه ر ا غلی
په یوه زندان کښې سل یـوسفه غلی
په یوه فانوس کښې بلېږي سل شمعې
ځاربده ځنې فلك د سو د په طمعې
له پر تو ه یې د مخ په آ بو تـا ب
ؤ ګلګون د هر هلك د لا س کتا ب
چه به چا هغه نر حو ر هلك لید ه
پرې ګمان د غلمان هم صـا د قېد ه
په آ یات د لؤ لؤ منثو ر د ځېر شو
له تصویر ه یې هاله صورت په ځېر شو
هر هلك ؤ په رو ش د پـر یـز ا د
د هر زړه د وړو په علم کښې استاد
ځا نه ځا ن لو له سبق د جـد ا یی
د م په د م و ینځه تخته د ا شنا یی
کم راوړه په ژبه حرف د پیو ستو ن
جنګېد ه سر ه هر د م مغل پښتو ن
د یو ه به پـه تکر ا ر د سبق ژ بـه
د بلبل په ډ و د ګو یا و ه منا سبه

بل له تاوه د څپېړی پــه فــر یــا د
ژا ړه‌غواړه په‌آرزو مرګک داستاد

یو له ځانې د سبق سبقت ا نـد یـش
بل له شو لو د رخصت په خاطر ریش

د یوه په خوله سبق په خاطر خوشې
بل له وېرې خو ځو لې شو نډې تشې

یو د سترګو بیماری انه با نه کړه
بل په بل مکر استاد ته افسانه کړه

یو په یو رنګک‌غولوه‌حیله‌سازی کړه
بل په بل رنګې افسون دغه بازی کړه

یو خاموش لکه‌غو نچه له لوستو سېر
د کو ځو تر پکې یــا د ې سبق هېر

یو له بــل پــه شتا بـی هــسې سبق
چه د کر بنې په لو ست ړاوه و ر ق

یو ؤ وار ته د سبق نا ست منتظر
بل لــه و ا ر ه د ســبــق مــتــنفر

یو له بله هسې لو بې کړ ې په غــلا
چه پر ې مه خبر یږ ه هیڅ روح دملا

یو له ډېرې غصې ږړوس لکه غو نچه
بل له جوشه د خند ا شو لېو ه چیچه
هر یو طفل ؤ د لو بو په بـا ز ا ر
په خو له حرف په خاطر سیل د بازار
ؤ هر یو لکه غوټچه سر په ز نګو ن
له بېد ا ده د استاد و ینی لړ مو ن
هر هلك به خوله په هر عهد پیو ند
د حضرت ا خون په مر ګك با ندې سو ګند
چه ښکار ه ورته شا هد بله لمبه شو
پورې اور د صبر زهد په پو مبه شو
لـه هیبته کـړ هـلکو هـسې شـو ر
چه تحقیق په مکتب و لګېد ه ا و ر
په صفا چه یې دمخ په ورق ځیر شو و
تر جما له یې همه خجلت پذ یـر شو
چه را وخوت لکه نمر په مغه جمعې
هر هلك باندې فد ا شو لکه شمعې
که تعلیم ته یې هر څو کړ استادزړه
زر په زریې ورته کړنه شو استادزړه

چه یې ډاډ وزړه لره ورکړه په ډېر پس
ځان د اور په لمبه باندې واهه خس

وی یې وایه ای د ناز په پېو لو یه
بسم الله له بسم الله اغازی بویه

د مکتب له اصطلاح بې خبر ښکلې
دغونچې په څېر خاموش پاتې شو غلی

چه یې شونډو په سبب د حیا شرم
نکړه مات په یوه حرف د سکوت درم

اوریده مې چه استاد د زړه په ځله
هلته واوسته یو بیت د زړه په ځله

«ربه پرانځې غونچه د امید وارو
جلوه ګر کړې ځنې ګل د ګلعذارو (۱)»

په نسیم د اجابت شګوفه و اشوه
د شاهد خاموشه خوله په حرف ګویا شوه

په اول ګوزار شاهد کړ مکمل
په خنجر د بسم الله اخوند بسمل

۱ - الهی غنچهٔ امید بکشا – گلی از روضهٔ جاوید بنما .

چه حاصل یې په بسملې خولې بری کړ
په نېزه یې د الف اخوند سوری کړ
په هر حرف هو مره اثر باندې کېده
چه په عشق کښې دم قدم وړاندې کېده
نه تنها اخوند اخته په ځګر خون شو
له دې غمه هر یو حرف په شو اخون شو
چه یې ډېر د عشق تر بار لاندې زیر زیر شو
سم قامت د الف خم د دال په څېر شو
بې ته پېښ له درده دو که کم و کاست شو
په همسا یې د الف ځکه بر خاست شو
چه حلقو ته یې د زلفو جیم نظر کړ
له دې شرمه یې و پښو ته څوړ ند سر کړ
رې وزی یې د لبا نو له اثره
د اصلی میو خمار یو ډېر له سره
سین سپین کړی غاښ دغم له مړ خند یه
شین قی کړی تور سکاره له ناپسند یه
په کاته شوې ور ته سپینې د صاد ستر ګې
له کینې ولو ېدې په ور ته د ضاد ستر ګې

عین هسې له عینینو بهر و ر شو
چه چینه دخو ږ و شهد و مقر ر شو

لا س په لا س یې د کا کلو له آ شفته
د فې قا ف نا مه د چین په نا مه هفته

چه یې ئمر با ندې دشو نډه در خشان شو
قاف تر قافه فو ری غر د بد خشان شو

کا ف کو نډه د کشتن ا یښې په تند ی
لا علا ج کا سر کو ز ی لکه بند ې

چه یې خیا ل (۱) پکښې دخال ښه ور ښکار ه شو
د نون زړه له غمه وسو تور سکاره شو

زړه او ر واخست د شو نډو له شر ره
د ا چه شنه لو خړه ځې د میم له سر ه

چه قبو ل یې د خد مت په التما س کړ
نور یې لام ته دموسلې جارو په لا س کړ

که واو بیا مو نده دو ستی ددې حر م
د یو ې ستر ګې ځښتن ؤ نه ؤ ګر م

۱- (پ) په نسخه کښې (حال) دی.

ولی هې په دوه رڼو ستر ګو ړنده شوه
چه دا هسې له شرفه پس ما نده شوه
چه له واړه وروستو پاتې شوه غمنا که
کو ته کړاغه شوه دا یې له دې پخسا که
تما مې اهل مکتب د ده لـه مخه
بهره وړې وه رنګ رنګ له یوه سخه (۱)
د جمال په آب و تاب کښې یې هر سر
یا ؤ بې ژ بې ما هی یـا سمند ر
چه به چا کړ سر د ننه په مکتب
خا مخا به یې حاصل شو تب و تب
که به شیخ په ستر ګو ولید که زاهد
په دعوه به یې د حسن شو شاهد
لګید ه بـه یـې د لبو لـه لمبې
اور د هر احد د صبر په پمبې
چـه په بیت به یې ناظر شو د ابر و یو
فهم فکر به شو ورک د سخن ګو یو

۱ — په (ع) نسخه کښې (له یوه مخه) را غلی دی.

هلکا نو اخوند وا ړه پر آشوب شو
لوسته هسې له منځ هېر لکه هېر خوب شو
نـه شو بې عشقه بل بحث په مکتب کښې
ګفتګوی کېده دعشق په تاب وتب کښې
چه ځا ګرد په مدرسه دعشق استاد شو
داستاد په شاګر دی ورته استا د شو
چه آزاد به ځنې طفل پر یز اد شو
ړوب به اهل دمکتب په سل فسا د شو
هسې شان به کړه ژړا استاد پنهامه (۱)
لکه ژاړی پټه خو له بوره بد نامه
په ژړا چه به یې سوخت نه شو سا هه
په څپېړ و به یې مخ ګـو شه و ا هـه
له ژړا یسې هر یك ؤ دل خسته
په او بـو سره داو بنو و له تخته
هـر هلکک بـه پـه سـبب د شیـدا یـی
سو کك په ستر ګو غړاوه له جدا یی

(۱ - پنهامه د (پنهان) به معنی.

چه جدا یې د الف له خوا قامت شو
دعاصی په څېر ولاړدی تر (۱) قیامت شو
چه یې بې د بېلتا نه بلا کړې څېرې
تر لمنې یې ګر ېو ان که څکه څیرې
تې یې هم د بېلتا نه د غم له جو شه
د نغری په غاړه پر ېو ته بېهو شه
جیم، حې، خې ور ته سجده کړه د خضوع
هسې پا تې شوې خوا شینې په رکوع
چه یې پر یوو ت په سر پېټۍ د غضب
و وت کوب د دال و ذال په دا سبب
رې و زې یې له نا ځا په بېلتا نه
هر ساعت منلوه چاړه په لړ ما نه
څغلې سین پسې په غا بش لمن نیو لې
دهجران په لاره غو ځې دز ړه ولې
شین که شل څله حلال شو نه شو و ینې
ترې تر درېو ټکیو تو یې زیاتې و ینې
په ژړا شوه پسې سپینه د صاد ستر ګه
بېر ته ولو یده له غمه د ضاد ستر ګه

۱ – په (۱) نسخه کښې د (تر) په ځای (پر) دی

چه یې نه وینی سیاهی د ستر ګو بزر ګو
طې ، ظې سیخ د الف ومنلوه په ستر ګو

له هجران یې په عین کښې هم په غین
د طوفان جوش خروش لیده شی عین

بېلتانه یې پـه تندی د فـې و قـاف
بې مـهلته کېښو غـر د کـوه قـاف

شو غرور د سر کښې له کافـه لـرې
چه پرې ووې بېلتانه د ویر سندرې

چه جـدا یې د طرې په طور لام شو
پېچ و تاب سره په درد و په آلام شو

حال د میم راڅخه څه پوښتې خود وینې
چه له غمه پسې اچوی سـر ې و یـنی

نور د نون له حاله څه وایم چه چون شو
هیڅ له درده سر نیوی نه شی ز بون شو

په آرزو یې د دیدار یـك چشمه وو (۱)
ځیر ځیر کیږی د راتلو یې په راه رو

د هـې ستر ګـې د ژړا پـه میو مستې
هر ساعت د زړه په وینو می پر ستې

---

۱ ــ یعنی (واو)

یې له ډېره غمه پرېوته خسته

لکه بخت د عاشقانو برګشته

تمامی اهل مکتب در لود په شان کښې

حال په وصل کښې هغه دا په هجران کښې

عاشقان په دواړه توګه دی حیران

نه آرام ور کوی وصل نه هجران

په هجران کښې د وصال په تمنا مری

په وصال کښې د هجران له غمه (۱) بیامری

خو په اصل پیدا شوی بدشامت دی

په وصال کښې به پرې حال هم د قیامت دی

غرض دا چه د مکتب له استعماله

شاهد بیا موندهٔ بخره درسته کماله

صوری حسن یې زیبا په معنوی شو

په خطاب د ذا النورین مثنوی شو

ور عطا لکه صورت هسې سیرت شو

بصارت یې ښایسته په بصیرت شو

---

۱ ــ دا مصرع به (۱) نسخه کښې داسې ده (په وصال کښې خدای خبر به څه وینا مری)

که په کو ر ؤ نازنین که په مکتب کښې
ؤ به ګل غوندې په عیش و په طرب کښې
دم قدم به غزل خوان نغمه سرای ؤ
په زړو ر د دانا یـی حسن ارای ؤ
واقعی په لږ مدت د دغه طور
معشوقه په دم قدم شوه عاشق طور
سر تر پا یه سره لمبه شـو د ادراك
لـګیده د صـبر زهـد په خشاك
پوه شو درست د هر رموز په اویه (۱)
که دې نه کیږی بـاور و ا ز میه
را شه ورشو تـر مکتبه د شـاهد
خبر دار شو لـه منصبه د شاهـد
مصنف د دې کتاب کـا هسې نـقل
ښه شاهد ؤ د شاهد په حسن عقل
چه ویل را ته په شپه یـوه همرای
تـر مکتبه ښکلـی نشته بـل یـو ځـای

(۱) په دوادو نسخو کښې به (اویه) لیك دی . ښایی د وایه په معنی وی .

خصو صاً هغه مکتب ارم آرام
چه کوی پکښې شاهد آرام خرام
چه شاهد غوندې نرحور پکښې نما ییږی
که هغه مکتب جنت بولم ښا ییږی
(۱) له دې گفته را په خواهومره هوا شوه
چه د صبر د کتاب شیرازه وا شوه
سبا و رغ د دې نغمې په اورېدو
د مکتب په لور روان شوم په لیدو
دا آواز مې په زور وکېښ که گورمه
که څوک پېری سپاره زه یې پلورمه
د شاهد په غوږ د اغږ زما سیده شو
د دادی آواز دا د گر ته رسیده شو
اندرون و ته طلب محض مجنون شوم
عقل هوش د با ندې پاتې زه درون شوم
د م قدم مې کړ هیبت په آرام رخه
لږ زېدم لکه ذره د نمر له مخه

۱ – دا مصرع په (پ) نسخه کښې تغیر لری : (له دي گفته په را نجه هومره هوا شه) .

چه نا ګاهه مې نظر د مخ په شمعه
بې اختیاره پر وانه کړ خاطر جمعه
د امنګیر چه مې د ور باش شو ددیدار
ښو یې سپینې په ځای ودر پد م حصار
هسې رنګ له خپله ځانه شوم بې ځانه
لکه څوك په مزری پېښ شی نا ګمانه
چه د مخ په آب و تاب یې نګران شوم
ور ته پاتې آینه غوندې حیران شوم
نه مې دم لیده په ځان کښې نه قدم
چه ور وړاندې شوې په لا او په نعم
چه مې پوه صاحب حال شو په حال باندې
په شفقت سره یې و بللم وړ اندې
هسې دم یې د حکمت را باندې پو کړ
چه زما د حیرت زخم یې رپو کړ
سپاره مې یې د زړه په ښه اعزاز
و اخسته له لاسه ښه بلکه په ناز
ګرد غبار یې او لا ځنې رواص کړ
دوباره یې پکښې ځیر سوره اخلاص کړ

چه یې پسند خط و صحت کړ نها یت
بیا یې نه مو ند پکښې حر ف د شکا یت
وې یې څه غوا ړې بها ؟ وې مې زکاه !
وی یې ښه کنه قبو ل ، و لې ګنا ه ګنا ه
وې مې واخله د محتاجو مال وړیا ځي
ګڼه د ا ر نګه کا لی کله په د ا ځی
چه سبب د آ شفتن د فر یفتن د ی
د عا شق معشوق د ا د ن و ګرفتن دی

## رخصت غوښتل دشاهد له عزيز کورته اواچول د ده
واورته اوعزيز دده رضامندي کول اوخپل ځان دفراق په اورسول

عاشق نه لري دا بخت که هر څو ښاد شي
چه حاصل يې بې خلل د زړه مراد شي

شام د وصل باندې هسې ژر سبا شي
چه خندا پورې د برق و د برېښنا شي

ازلي بخره يې دا موندلې وېشه
چه هېچرې يې دا نوش نه وي بې نېشه

سيده نه وي واصل شوی بيا جدا شي
(۱) تو تيا يې د ژړا برق د برېښنا شي

که يقين دې د اشناو په وينا دی
دشاهد عزم، شاهد په دا معنا دی

يوه ورغ يې شګوفه خوله شګفته شوه
وعزيز و ته ګويا په دا ګفته شوه

---

۱- دا مصرع په (پ) نسخه کښې داسې ده: (تو تيا يې د ژړا برته برېښنا شي).

چه مې ځلله د وطن په یوه حلله
لمبه پورې کړه د صبر په خځلله
په ارم کښې مې آرام د خاطر نه شی
څو باطن دخپل وطن را ظاهر نه شی
له غربته خفه شوی یم هرګوره
که صلاح وی زه به (۱) لاړ شمه ترکوره
یوه موره لرم خسته هجر ځتلې (۲)
ودیدن ته یې زما ستر ګې ختلې
د دنیا په مخ یې بې زما له مخه
هر ګز نشته بله رخه بله سخه
هره ورځ به مې له غمه لکه صبحه
ځیر وی ګرېوان پو هېږم په داقبحه
مناسب دی چه ترکوره پورې ورشم
یو څو ورځې د وطن د صبح نمر شم
چه نازل شو دا خطاب په عاشق باندې
شوې یې اوښې دباڼوجواب ته وړاندې

۱ ـ په (پ) نسخه کښې دا کلمه داسې ده: (ور پشم)
۲ ـ په (پ) او (ع) نسخو کښې (وژلې) راغلی ده

وی یې نشته را کښې توان دد ې وینا
که مې خوا ه نا خواهه و ژ نې امنا

دا ساعت یې کړ مه ګو نګ دور دوران
واقعې دپاڼې دپړانګ تر منځ حیران

یو پلو د جـدا یـې لا ر مشکله

بل پلو غیر مرضی د یا ر مشکله

د واړه چار ې را ته پېښې شو ې مشکلې

نه مې صبر د یو ې شته نه د بلې

که وایم مه ځه ملالیږ ی ملا لیږ م

که وایم ځه په تیغ د هجر حلالیږ م

په دا کار کښې لکه پا نې هسې رېږ دم

نه پو هیږ م چه کوم مر ګ ته غاړه کیږ دم

چه عاشق پا تې حیر ان په اضطر اب (۱) شو

تللې عقل ورحاضر په دا جواب شو

چه دیار د زړه سا تنه ضر وری د ه

په سا تل یې ځان کو تنه ضروری ده

عاشقې وایې ودې ته که غوږ کیږ دې

چه دیار په رضا خپله رضا پر یږ دې

---

۱ ـ په (۱) نسخه کښې (استصواب) د ی ۰

هغه مه ګڼه مېن محض خلاف کا
چه په خپله رضا ځی دمېنې لاف کا
یار دې هر رنګه طالب (۱) د یار د مراد وی
مراد یې محض ظلم جور وې که داد وی
د عزیز چه حسب حال مفتی قاضی شو
لا علاج په جدایی د یار راضی شو
اختیار یې د یار هجر له خواری که
خود په خود یې ځان حلال له ناچاری که
په دا شرط چه زر په زر مسیحا د م[illegible]
بېر ته راشی ما ژوندی کې ی په قدم
په وعده د زر راتلو شاهد رخصت شو
د عزیز له تنه ورك د ژوند فرصت شو
د سفر په نیت یې مه ګڼه اصلا
وه یې ومرګ ته د عاشق تړ لې ملا
مرصع تیغ یې تر ملا په هسې شان کې
چه یې طعن د فلك په کهکشان کې

۱ - په (پ) او (ع) نسخو کښې داسې ده (یار خو هر کله طالب د یار د مراد وی).

هر ګوزار به دنظر خون رېزه برق
دا جهان کا په طوفان د وینو غرق
سل سروونه یې په سر باندې د آب
ګرځېده هوا پرست لکه حباب
چه تر ملا یې په موتوجې اوخنجر کې
پرې یې غوښ دصبوریه باقي بنجر کې
هر ځیګر (۱)وته دزخم په امید شو
هر یوژوی دامید(۲) په دام کښې صید شو
چه یې سپر په غاړه وا چاوه نګار
ګنې شوه توره ورېځ زېب د بهار
هغه ابر لره سخ دی په هردم
چه پرې دارنکه ګلشن کښېږدی قدم
لری ګل د نمر سپوږمی په دامن کښې
دم قدم کا چمنی په دا چمن کښې

۱ ـ په (پ) او (ع) نسخو کښې (چاکر) راغلی دی .
(۲) په (پ) او (ع) نسخو کښې داسې دی : هر نظر یې د جوهر په دام کښې صید شو .

هسې نه وایم تورکښې ترملا مهروکا
بلکه ځانسره یې مـل تول د ښېرو کا
په خندا به هر خندی د جفا کـار
محض مالګې دوړ و لې په پر هار
په ښې لاس یې لینده نه وه نوې میاشت وه
چه خټلې دجهان په خاطر داشت وه
چه یې واخسته نېزه چسته په لا س
ځنې و شوه د فلك ملك هراس(۱)

هسې شان چست چالاك په توسن سور شو
کو یا لعل د بر ښېنا په رسن سـور شو
ور ته نه وا یم تـو سن یـو پر یـزاد ؤ
نه تو به تو به غلط شـوم برق و باد ؤ
خصوصاً چه د شاهد پـه ز ړه پـسند ؤ
په سو اری کښې لکه روح هسې خورسند ؤ
له تندیـه له شـوخیه پـا ی تـا فـرق
مـؤذ ن ؤ پـه اذ ان د انـا البـر ق

(۱) په (۱) نسخه کښې (وسواس) دی .

په هیڅ ځای یې لکه و هم آرام نه شو
چاپې ځـای سهی ګولی د ګـام نه شو
هر قدم یې دسم نقش په مهتاب کښې (۱)
د هو سې د شو خ چشمیه په جواب کښې
لکه شـوق د عـاشـقانـو ګـرم بـاز ؤ
لـکـه نـا ز د دلـبر انـو بـې نـیا زؤ
یـو نسیم ؤ پـه نامه د آس نـومـړ ی
د ګلر خ شاهد سورلې لره زین کړی
د شاهد سورلې په‌شان په‌زری زین کښې
دا داند از غواړی‌مثال په‌ یو پر تحسین کښې
لکه پـا څـی د شـاعـر د زړه مـضمون
جلوه ګر په نیت کښې کښېنې ر هنمون
یازر غون ګل لاله شی په شنه ښاخ کښې
یازیبا پر ی پیکر کښېنې په کا خ کښې
یو ځو لی شا طر بچه یـې پـه جلب کښې
لکه ستوری د سپوږ مې په جلـب کښې
راغله و در پده حـا ضر لاس پـه نامه
هر احـد بـاله جـها ن سـتر ګې لېمه

---

۱ ــ د دې بیت د ردیف کلمې په (پ) او (ع) نسخو کښې (کې‌ښ) دی.

تاج په سر د هر یوه لکه هد هد
په تو ندی د آهـوا خلی تعهد
په غرور د چالاکی لکه د برق
له مغر به یې نظر نښتی پـه شرق
ؤ هر یو لکه غوټچه د ګل په مرسته
تر سینې تـرې لـې ملا هغر پـر سته
یو خادم یې په خدمت ولاړ مخ رونی
د طاووس وزر په لاس کښې مچ شړونی
بل خدمت د صراحی په لاس اخستی
و بوسې ته یې زاهد وسواس اخستی
بل نیولې توره ډال ورته په ښنګک کښې
خوله په سوله په سلاستر ګې په جنګک کښې
بل نیولې دو شاله ور ته په لاسو
کوه تاخت د صبر زهد په هوا سو
ما یحتاج خدمتګاریې ورسره کړه
تر سپوږمۍ یې یو ښوستوری چا پېره کړه
د غه پسه د سواری په وخت عزیز
خود کرده پیلی زړه د غم په خریز

په رضا د یار قضا ته ا یښې غاړه
ویره ژلی سوک په سترګو مړه ژاړه
په فراق یار د ملال له خپله لاسه
په خپل تیغ سره حلال له خپله لاسه
راغی ځار شو تر کور ګه دشاهد
رضا جوی په هزار رنګه دشاهد
ګله وروسته ګله وړاندې ګاه په ځنګ
ځار پېده تر هغه او رلکه پتنګ
ګاه یې سجده کړه لمن په ښه ادب
ګاه یې ښکل کړه په تعظیم سره رکاب
که هزار صبر وسکون به یې بنیاد کړ
بې اختیاره به یې خولې آه فریاد کړ
نه یې غم د جدایۍ په ځان ساهه شو
نه یې دم غیر مرضې دیار واهه شو
چه شاهد په لپونتوب دعزیز ځیر شو
لا علاج ورته نژدې په دا ځنځیر شو
وې یې ای په نوش دوصل پرور ده
په درست عمر نیش دهجر ناخورده

چه له تا به دهجران خوري هو مره رم
دوصال په سوري لو يه نه يې ګرم

په هوس پرورده شوی زړه يک لخت
ويلي کيږي لکه موم په نرمۍ سخت

باري بيا چه دنيا ځای د آرام نه دی
دهيڅ چا پکښې روغ پاتې احرام نه دی

نتيجه يې کله غم کله بنا دی وی
وظيفه يې ګهی بند ګه آزادی وی

مې بايد چه مردانه اوسې په غم کښې
له بناديه همخانه اوسې په غم کښې

په دا زهرو آموخته لره مزاج خپل
دم قدم اوسه په رسم په رواج خپل

که يې خدای کازه په زړ لکه نفس ستا
په نفس کښې جلوه ګر شم په جوش ستا

جدايي ته به دې نه پريږدم چندان زه
زر په زړ به دې په وصل کړم خندان زه

خاطر جمعه لره مه کوه وسواس هيڅ
تفاوت په دا کښې نشته کوز و پاس هيڅ

چه بی واو ربده دیار مهر بانی دا
غم خواری قدر دانی نکهیا نی‌دا
دمهجور له غمه تللی‌زیره به‌گای‌شو
له اوله بی پایی گه خو برپای شو
دو داع نغمه بی کیره سره آغا زه
سرا سر لکه لمیه له سو زو سا ز ه
له دې لوریه آه فریادجان‌گداری
له هغه لو ر یه کر م دلنو ا زی
له دې لوریه سیند داو بنو په ډیر شهر (۱)
له هغه لوریه ژړاشو نیې په‌مهر (۲)
له دې لو ریه بې هو بنې د یوانګی
له هغه طر فه ډ ا ډ مر د ا نګی
له دې لو ر یه التما س دزر را آلو
له هغه لوریه بنی لاس دزر را آلو
له دې لوریه فریاد ونه شرر پا ش
له هغه لوریه سلام ؤ په‌خوش باش

۲ـ( د( شهر) (ش) په بهبش.

۲ – د (مهر) (۲) په بهبش

چه شاهد ځنې جلب د مرکب و اخست
نور عزیز تاب و تپش لکه کب و اخست
که هر څو به یې باران داونښو و کړ
دوه قد مه یې له تلو پسته نه کړ
څو لیده شو لکه میاشت په آب و تاب کښې
ورسره ده نظر ته په رکاب کښې
چه جدا ځنې شاهد په شوا خون شو
دغو نچې په څېر یې زیست په ځیګر خون شو
هغه ځای هسې په فکر کښې ډوب کښېناست
چه له خاور و سره خاورې میزوب کښېناست
نه یې دم نه یې قدم نه یې کرتوت (۱) وو
هسې شانې حیران تللی (۲) لکه بوت وو
په هزار حیله یې بوت تر خپله کوره
دم ختلی د مر ده په څېر تر ګوره
دیار خیال ورلره هسې خلوت ساز کړ
چه له خلقه یې په خلق کښې بېل باز کړ
ساقې راشه را کړه مې په پېمانه اغر کښې
بیا هوس د بېخودۍ راغی په سر کښې
چه یې غوڅه په مدت د وصل لار کړم
سوال جواب له زړه اداپه غوږ یار کړم

۱ - کرتوت یو هندی لغت دی د (کړنې یا کردار) په معنی.

۲ - په (پ) او (ع) نسخو کښې یاتې دی.

## رخصت غوښتنه دِعزیز له پلاره دِصحرادِتللواوورتله

وشاهد ته قاصد طور او پیژندل ددوی سره

وایې هسې چه هجران په هاړې هوړې

وو یسئلې په یو محل دعاشق دو ړې

سهیدی له یار ره هسې جدا نه شو

پیچ و تاب لکه مکتوب په پلتا نه شو

چه له تابه دهجران بې آب و تاب شو

له خپل زړه سره په داسوال وجواب شو

چه وعده ده دنګار در اتلو لرې

تا ته پر یو تې چا پېر دغم لښکرې

څو راځې دارو دوصل له عراقه

ستا به زړه تر هغه وچوی له فراقه

څو راځی کومکئ دوصل په مددستا

تر هغه به کا فراق سر په لحد ستا

مې باید چه یو قاصد د خپل مکتوب

پیچ و تاب لکه مکتوب تر خپل محبوب

له آفتاب سره آفتاب لکه ذره شی

له دریاب سره دریاب لکه قطره شی

ورته عرض د بېلتانه جور وستم کړی

جلوه ګر بدر منیر په داتور تم کړی

رو برو خپله خواری ورته ظاهر(۱) کړی

ورته تش له ويره غمه يوک(۲)خاطر کړی

ګوندې ورحم یې سترګو په نامرادی

له دې بنده ور کړی خط د آزادی

پس له دې یې داحیله کړه چلارته وډاندې

زیږ په زریې ملمع کړه لاندې باندې

چه کباب دبنکار دشوق په آتش یم

په ګلګشت پسې د ګلو مشوش يم

زړه مې صید دصحرا دلاله زار شو

وحشتخور له شوره شره دبازار شو

په دماغ مې لګی بد دښهر (۳)شهر

زړې مې واخست طبیعت دمهر (۴) مهر

---

۱ - د ردیف کلمې په (پ) او (ع) نسخو کښې په دې ادوو و ستره بیت کښې تغییر لری : (کړم)

۲ - په (پ) نسخه کښې (خوند) دی.

۳ - د (شهر) (ش) په پېش.

٤ - (مهر) (م) په پېش.

نن ساعت یم دیپر خلق له ها هو
و صحرا ته رمیده لکه آ هو
په دا باب که اجازت را عنایت شی
ضلالت به می بدل په هدایت شی
پوه شو پلار په حال دزوی په دا نغمې
له نغمې یې کړې دریافت دزړه نغمې
چه دا هسې نیم بسمل په اضطراب دی
دشاهد په بیلتانه خراب تراب دی
دل داده دیار له هجره لولپه دی
په ارم کښې یې ارام نه شی خپه دی
تنګ وهلی دی لړم د یار د هجر
مناسب نه دی له وعظه دیار هجر
می باید چه دا اند وه ملالی خپله
د صحرا په سیل دفعه کاله دله (۱)
غم غلط د صید وسیر په تماشه کا
په هوس لرې له زړه دغم خاشه کا
چه یې اینسی د حیلې دام دامید
پکښې و نښت عاقبت در خصت صید

۱ـ په (پ) نسخه کښې (بخپله) د ا غلی دی

دصحرا په لور روان لکه صباه شو
لاس په خوله له رسوایي دڅ یادشو
ور سره یو هسې فوج موج بارؤ
شو روشریې دمحشر په زړه غبارؤ
بېګاهی یې (۲) یوهمراز پەرازخبر کړ
چه مې زړه دیار فراق زیروزبر کړ
لرم قصدد یار دښهر قاصد طور
په طلب د بېلتا نه د یار د غور
ته دلې زما دراز په امان اوسه
په پرهر د دې شوخۍ درمان اوسه
د دې فوج سر داری سپارلې تا ته
زه به اوس راشم که خدای کا ترساعا ته
دا وصیت یې کړادا و یوه یارته
راکېښ شوق د دیدار دیار دیارته
یکتازه له ذوق وشوق په توسن سورلا ړ
دمنزل په وچ وابنه لکه بل اور لا ړ
یو قدم لکه له ځایه هسک بر پښنا لا ړ
بل قدم دا خل په سیمه د آشنا لا ړ

---

۲- (پ) او (٦) نسخه کښې (په بېګاه ، بې یو)

ځان یې جوړ قاصد ا نه په هر لبا س کړ
جلوه ګر د یار ددر په التماس کړ
چه ر ا غلی یم له ښهر ه د عشا قو
خبر د ا ر له سو ز ه سا ز ه د مشتا قو
وګوا هد ته ر ا ستو لی یم عز یـز ز ه
بې له د ې مطلبی نه یم د بل ځیز ز ه
چه خبر له حاله ز ده د ګل بدن کړ م
بیا یې عرض هغه بلبل ته من وعن کړم
یو کاغذ د ده پـه لاس کښې پیچیده ؤ
چه نو مړی ز ما نې په غمد ید ه ؤ
خـبر د ا ر و د ا خبر مـهر مظهر
پر یز ا د ته کړ په غو ږ لکه ګـو هـر
چه یو کس په شان ولاړ د قلندر د ی
چه ر ا و ړ ی یې پیغا م د سمند ر د ی
(۱) عجب پر د پر و ا نې په لا س لر ی
و ږ یو ې ته به یې ستا د مخ سپا ر ی
په شتاب مشرق آرای بدر بېر و ن شـو
د خورشیدو د مطلع جواب موزون شو

۱ ـ دا بیت په (۱) نسخه کښې نشته .

په کتاب د قاصد هسې جلوه گر شو
چه له تا په یې د مخ زیر و زبر شو
له هیبته د حیرت هسې بې هوش لاړ
چه یې سوال جواب له فکره فراموش لاړ
په تکلیف سره یې خط هغه ا رحیله
په لاس ورکړ د شاهد لا وسیله
وی یې واخله ولوله حال د مهجور خپل
چه بیان کا یو په یو درته ضرور خپل
شکر لب کړې پس له خطه ښې پو ښتنې
په قاصد تو یې شکر ې د پو ښتنې
وې یې وایه چه عزیز په څه آشوب دی
وې یې سروپ په میومست د میڅتوب دی
وې یې نور په ستر گو وینی ای دوک منه
وې یې کړه له خپلو ستر گو دا پو ښتنه
وې یې چا سره پالی د صحبت درم
وې یې ستا له درد و غمه سره گرم
وې یې څوک یې دی په شپه د مجلس شمع
وې یې داغ د بېلتانه د وصل طمع
وې یې څوک یې دلنشین یار یاران دی
وې یې هغه چه یې نوم درد هجران دی

وې یې چا سره همدمه هم عنان دی

وې یې هغه چه یې نوم آه و فغان دی

وې یې شغل د کتاب ډېر کاکه کم

وې یې خود شو مجموعه د درد و غم

وې یې که تیراندازی په هغه رنګ دی

وې یې خودله شصته لاړلکه خدنګ دی

وې یې حال یې د همزولو په څه شان دی

وې یې هریو لکه زلفې ستا پرېشان دی

چه شاهد په غوږ وخیر دا ګفتګوی کړ

مضطرب دې ګفتګوی په شان د ګوی کړ

وې یې داسوال وجواب د قاصد نه دی

دا سوزان داب وآداب د قاصد نه دی

دقاصد جوش وخروش دارنګه نه وی

د استازیو ګوش وهوش دارنګه نه وی

نه تنها له خولې پیغام د هوا خواه کا

ورسره سوزو ګداز دزړه همراه کا

دا ډنډوکی واقعی د طوفان موج کا

دا سورو کی ګرد غبار د عظیم فوج کا

معلومیږی عجب شان له دې قاصده

بل بل رنګ بل بل نشان له دې قاصده

هسې نه وایم قاصد صحرانورد دی

دصحرا له لېونتوبه سېلاب درد دی

د قاصد په څېر هوا د پیغام نکړی

د استازیو په څېر حرف دکلام نه کړی

په هرګوټ لهدې پیالې چهدیې شومی

د ښېښې دماتېدو آواز رادرومی

چه یې جام له توندو میو دی پر کړی

د اوبو په نام یې ولی دی نومړی

مې باید چه یې ګوشه ماوشما کړم

څنې حل هوی هوا د امعما کړم

چه هر ګور شو مضطرب دحال وحل ته

کناره یې کړ قاصد خلوت محل ته

وې یې وایه ای دخپل پیغام قاصده

په آهنګ کښې مدعی په رنګ شاهده

څوك یې څه نو مې سکندر که قلندریې

د کوم ګل و نار بلبل و سمندر یې

پرده لري که له رازه د ل ا فروزه
نفس الامر حال څرګند که خوش آموزه
ښکاره په حجاب نه شي د او ر لمبې
نوراني حسن و جمال د رڼا و رمې
د قاصد په طور نه دي ګفتګوي ستا
راکوي خماړ د میو آب جوي ستا
چه عزیز شو یو په یو خلوت له یا ره
بې وسواسه د اغیار خلق له و یا ره
نور یې پورته که پرده حال (۱) له مخه
چه وړي نه شوه د هجران بې روغه رخه
نه مې هجر ته په صبر د م و اهه شو
نه مې سیخ ستا د فراق په زړه سا هه شو
که هر څو مې په زړه زور کاوه د صبر
باري نه شي ژوندي ځان ما ننه په قبر
لا علاج د ا ستا په د وسیلې د ځنګلې
وا چولې ز ما خوار خاو ري خڅلې

۱ - په (۱) نسخه کښې (یار) دی ·

دا شوخی مدا سپ نه وه ولی و شوه
نور څه نه وایم کېږه سراسر و شوه

هم د عفوې سزاوار هم د سزا یم
په هر څه چه ته رضا یې زه رضا یم

د تسلیم او نبو یې مې د غضب اور کړ
ترحم چین له جبینه د یار خور کړ

دغه پسه هم آغوش ګل و غنچه شو و
د هجران پاخه بندوته خام کچه شو و

یې آسوبه سبب د زنې و رعطا ء شو
په تش بوی سره یې وارو پار خطا شو

چه یې فکر د بوسې لا پر شو له دله
حیرانی یې هوه په خوله د زړه بدله

درې شپې ورځې یې کړ ستون په دا کرده کښې
ځان څخه له نوره خلقه په پرده کښې

په هر باب یې غم خواری دمهماتی کړه
دل داده ځان فشانی یار امانی کړه

پس له دریو شپو رخصت شو غم آبادته
منتظر ه دایم د رغلم میما د تـه
د وداع په وخت تنها له خلقه بیا
شو قایم با ندې قیامت سر په د نیا
راشه راوړه ساقی می مجلس آرائی ئی
یار وعده‌د راتلو کړې ده په کمای ئی
مالا مالې پیالې راکړه چه یې نوش کړم
تر وصال یې غم د هجر فر اموش کـړم



## رخصت دعزیز دشاهدله کوره اوورتله ورپسی دشاهد او حصول دعزیز دمقاصد.

اوریده می چه قاصد دخپل پیغام
شو په مخ دمصلحت ر خصت انجام
دا نغمه یې ورو په غوږ کښې دده ور کړه
چه ته ځه زه دا یم درغلم باور کړه
یا نسیم شوم و الوتم په چمن ستا
یا شوم برق ولګېدم په خرمن ستا
لاعلاج روان شو ورغی تر فوجه
یوك دیار د جدایی د غم له موجه
له صحرایې جلب واخست دغم کورته
ژوندی خلق لا یې کورته مړه و کورته
(۱) زر په زر هغه په درددیار خبر یار
په وعده سهی ر بښیندی برا بر یار
بې مهلته جلوه ګر دیار په لور شو
لکه برق دشتاب په تو سن سو ر شو

---

۱ - دا بیت په (پ) او (ع) نسخو کښې نشته ؛

وېی نغښته بېچاونه د بې نیازیه
کښې یې ښو قدم دیار په نوازیه
دڅوانۍ د باغ نسیم په خوشتا بیه
شو دیار په لور روان په شتابیه
له کمال و فایۍ هغه ضرغام
خو د جواب باصواب شو د پیغام
په هر ځای چه به یې سم د توسن لاړ شو
د غبار په ځای به آه ځنې ولاړ شو
ورنجوته به یې ګرد وایه د لارې
راشی ځلرېشی ځله ستر ګو دنګارې
ترجولان ختلې لار د عالی شان
شرماوه په جلوه شان د کهکشان
(۱) آب و تاب د روی یې لاپر بې آب تاب کړ
لاپر کشانه یې کسیا د مخ مهتاب کړ
د م قدم یې لکه ګل مخ د خولو
کړ تالاش تر بهاره پورې مخ دولو

۱ــ (به)، (پې) او (ع) نسخو کښې (آب و تاب یې دابر دیو آب و تاب کړ)۰

هره شپه به یې سپین مخ ښکلېدو لپاره
کې روښان په چپوه شام دغریبانو
که هر څو یې لکه روح په ورو خرام شو
له مشرقه هر ورځ مغرب آشام شو
چه کوتاه یې کړه طلب لار د مطلب
مرهم واخیست د پرهر په لور جلب
جلوه ګر د خپل زخمي په غم خانه شو
مسیحا (۱) دغم د مړه په افسانه شو
(۲) د نمر مخي له پر تووه ذره وار
ولویده عزیز له ځایه په سپه آلو ا ر
ور روان افتان خېزان په استقبال شو
پروانه غوندې په اور بې پر و بال شو
په خو ځله یې حاصل قدم بوسي کړه
هغه وخت یې بخت دوصل چپړ وسي کړه
لکه لاړ ؤ هسې راغی پسر فتسو ره
په خو بې بسله لمبه و ښکلې تسو ره

۱ ـ په (پ) او (ع) کښې (دغم له مړیو مسخا نه شو) راغلې دی .
۲ ـ دا بیت په (پ) او (ع) نسخو کښې نه دی راغلی .

ترهغه یې زیات د حسن آب و تاب ؤ
را کوز شوی په یو ه نېزه افتاب ؤ
لا یې ګل د لطافت په غو ړ پدده ؤ
تبسم یې د شبنم په ژ ړ پد ه ؤ
لایې هسې مست نر ګس ؤ په د ماغ کښې
چه یې سم وچا ته نه کاته د ما غ کښې
لایې نه ووړ د مخ اور لوګي د خط
په کمال ؤ د جمال په ګمان (۱) غلط
لا یې هسې تېر ه غشی د بڼو
خښېده دزړه په مو خه تر بڼو
لا یې لعل د لبا نو در خشا ن ؤ
د غمزې تېغ یې تېره په هغه شان ؤ
آب وتاب یې دنیا یست واړه په ځای ؤ
لکه ؤ هم هسې شان مجلس آرای ؤ
یو مقا م ار م آر ام متصو ر شو
صبح و شام مشرق مغرب دهغه لمرشو

---

۱ـ د (۱) په نسخه کښې د په ګمان په ځای (ګمانده) راغلی دی.

مجلسیان ورته لـه سهمه لکه ستـوری
فنـافیه محـوه کښېناسته کوز ګوری
چـه ادا ادب اداب شـو د پـوښـتنې
عزیز و خوت د غمونو له پوښتنې(۱)
پـه رو مـال یې د ادب غبـار د لارې
له مرآته د مخ لـرې کـړ څـو وارې
بیا یې پر یو ه لکه ګل مخ په ګلا بو
خماری ستر ګو یې غوښت جام د شرابو
جنګویې (۲) سپیلنۍ خمار آر مجلس کړه
دخوبنې په میو مست دواړه نر ګس کړه
چه یو څو ورځې محظوظ په دا طرب شو
شوق شکار آهو صحرا ته مضطرب شو
زړه یې و اخست ذوق و شوق د ښکار کولو
هـم هـوا هـوس دا س د څغـلولـو

(۱) په نسخه کښې (له بو ښتنې) لیکل شوی دی ښا یې د بو ختنې په معنی وی.
۲ــ دا بیت په (پ ا و ع) نسخو کښې نشته.

د بیا زاړه سیره (۱) سپر (۲) لکه آهو شو

د صحرا د ګلو ګشت ته په هاهو شو

ساقي راشه راوړه مې زه در فدا شم

چه په نغمه یې لېونی سر په صحرا شم

ګوندې ښکار د شېر شکار یار و آشنا شم

له عالمه د شعور په استغنا شم

---

۱– سیزه (س) په زوږه (شیل) په معنی

۲– سپرد (س) په زبرد (موړ) په معنی



## ښکار کول د عزیز د شاهد په صحرا او رسېدل په کوهي او لیدل یې د جنۍ په کوهي او مین کېده د شاهد په هغې جنۍ

رمېده له و دانې سر په صحرا
ترانه کړه په دا رنګ بې چون چرا

چه نن او ښې دوحشو لکه دریاڅې
نه پوهېږم څوك په سیر د صحراڅې؟

کوم اختر دی نوی شوی په هوسونن
چه کوی مبارکی سره هر سونن

کوم صیاد راڅي ودشت ته په کینه کښې
چه زړه وینې د نخچیر شو په سینه کښې؟

په راتلله د کوم صیاد دی غوبږېدلی
چه نن رنګ د درست صحرا دی تښتېدلی؟

لا یې نه وه دا نغمه تما مه کړې
نه یې وه لمبه د ژبې له سوو(۱) سړې

---

۱ـ سود ـ سوځلو.

چه ښکاره هغه ښکاري شا هد تمام شو
جلوه ګر لکه افتاب بین الا نام شو

په توسن آهوزن با ندې سو رراغی
د پر هېز په وچوا ښه لکه اورراغی

ملتانی په قوس قزح لیندہ په لاس کښې
ور ا ښکو ته د ګلرخ په التماس کښې

راغی ګډشو په ښکار غشی په ګورت
دم قدم سه لو ل ز ي و نه لکه قرت

چست چا بک په لیندہ ننو وت درون شو
د لیندې له شاخه ګل د نمرز ر غون شو

په هر ځای چه به وحشی ور ته مخ رون کړ
د ده شصت به پر ګ له غشیو لکه شکون کړ

هسې ګیر کړل آ هوان د تیر پیکا نو
لکه ستر ګې په ګیره کښې دمژ ګا نو

دا آ واز به خو ت له حلقه د بسمل

چه موونه لید جما ل د خپل قا تل

نه تنها له هوسوونړی خواب آشوب ؤ
بلکه هر انگه هر خوب دسو یې خوب ؤ
د بندوق د تش آ و از په لړې تړې
فراموش مکر افسون(۱) شو د کیدړې
په استو ني کښې یې مرګک در لود تفنګک
ترو زر لاندې قیامت تېر ه خد ننګک
چه گر ه به یې له زړه د تفنګک وا شوه
د قیامت شور و غوغا به خوا په خوا شوه
که یې تیر که یې نیز ه وه که تفنګک
څنې ځا ر شو هزار ځا نه د پلنګک
د لیوه یې و کیښې پوست په تأسف
چه یې خون په گردن پر وت ؤ دیوسف
چه یې مات په تیر باران دوپر کاله کړ
د گوزن شاخ زر غون گل لا له کړ
پر ې یې نه بنو هلته صید په هیڅ لو ری
بې یوې سیاه هوسیه دخپل سو ری

۱ـ په (۱) نسخه کښې) افسون) دا غلی دی.

نظر باز کور ته روان شو د ښکار و ړی
خونریزی ته لکه تیغ دستر ګوو ړی
تر دا منځ یو غزاله فتنه انګیز
لکه وی هسې شوخ چشمه بلا خیز
تمامی له رمه روغ د برق په طور
د صحرا په خرمه پاڅیده با لفور
دیبا بان له مخه والوت لکه رنګ
پسې واچاوه شاهد تازی کورنګ
هومره تاخت ور پسې وکړ آهو سوار
چه تری پاتې همراهان شو ټټو سوار
په آهو پسې تنها لکه آهو لاړ
په آرزو د ګوټ او بو سیند ته لاهو لاړ
ناګهان په یوه کلی چر ته پیښ شو
د آهو په طلب ته په مزری پیښ شو
کلی نه ؤ بلکه ښهر د پرو ؤ
د کنعان په سر یې پروت خراج د سرو ؤ
و دانی یې ؤ سل مصره ویران کړی
آب و تاب یې ؤ سل چینه حیران کړی

په چارسو کښې یې یو چاه کوثری چاه ؤ
چه او بـو ته یې تشنګي د مهر ماه ؤ
نورمې هیڅ له حال مه پوښته بېتاب شوم
چه مې نوم د کوهی و اخست لاړم آب شوم
نه یې څـرخ تنها لـه سره څـار پـه ده
فلـك لا تـرې څـار پـده بلهـاو پـده
له او بو یې (۱) دم ختلیو مـو نـده دم
شـرمنـده څـنې زنـخ د صـبحدم
وې ولاړې پر چاپېر د هـغه چـاه
یو څو جـونه پریوارې په مخ ماه
په ښایست یـوه لیلی وه زیبـا تـره
په جذبه په آب و تاب دلـربـا تره
او بو وړو لره منګی په سر راوړی

اړول په تورو سپینو دلارې ستړی
بې له ځان یې نظر نه ؤ په بل چـا
نه ترې زړه مو نده دستر کو په ځمبل چا

۱ـ دا بیت په (۱) نسخه کښې نشته ۰

تغافل یې دهر سوال په مخ جواب ؤ
په دا باب کښې یې غرور رورته ثواب (۱) ؤ

تبسم به یې جواب د صبحدم کړ
دم قدم به یې حیوان بې دم قدم کړ

شو (۲) شاهد د ډیر ې تندې وچې لاړې
جلوه گر لکه یوسف د چاه تر غاړې
چه له آسه د کوهې په غاړه کوز شو
بلا غواړې زړه یې پوه په بل رموز شو

غرض دا چه صیا د صید شو د مینې
بند یوان په او بړده قید شو د مینې
د شاهد له دله یوړې هغې نجلې

صبر هوش دهستو ستر گو په منگلې

هسې شان یې په ځای پریوو ست او تر
لکه باد په ځمکه ولې لوی نښتر

خدای ورکړی هسې حسن قد قامت ؤ
چه باعث په اوامت د قیامت ؤ

---

۱- په (۱) نسخه کښې د ثواب په ځای خواب لیکل شوی دی

۲- په (پ) او (ع) نسخه کښې دا مصرع داسې ده (شو شاهد ددوی له تندې وچې لا ړې)

له ګېسو یې جلوه ګر لیلته القدر

له جبینه یې پیدا مطلع البدر

ددوو وروځو له لیند و یې نری ابر

وراوه باران د غشو په ډېر جبر

ما تول یې په غمزه غزال دستر ګو

بې تکلیفه شنه مزری ددین په در ګو

تېز مژګان یې دقضا د باز منګل وه

خپل د هر زیرك مرغه په سخت کنګل وه

که هر څو پکښې شانې کاوه (۱) نغوتل

نه یې ووت له زلفو دو رو تسلسل

پېچ و تاب یې پېچ و تاب کړ تور سنبل

څخې بیا موند دراز عمر تسلسل

میخانې یې دسر وشو الهو هسې جوش کړ

چه بې نوشه به یې پوش دسړی هوش کړ

بنا ګوش یې ګوشمالی په صفایی

ور کوله در ګو هر لره څایی

۱- په (پ) او (ع) نسخه کښې (تفول) داغلی دی.

له رخساره یې په ځای د خولو دله
صفا یې په لپو لپو څڅېد له

هسې زېب یې اوړې پوزې کړ په اوج
لکه هسک شي له دریا به د نور (۱) موج

له اوبو یې د حیوان په ګفتګوی
وړی خولې ؤ مکرر داثر ګوی

څو خبرې ورته بل نه کړی چراغ
مو نده نه شي هو مره هیڅ د خولې سراغ

چه وا صف به یې ستایل دغا ښو در
به یې شو د خولې صدف په درو پر

څه آعر یف یې کړم دزنې له درخشه
دعیسی له لاس مړه وه حیات بخشه

چه میندا به یې کړ غاړې ته نظر
په سجده به یې سو ده کړ ورته سر

ؤیې هر دصبر زهد پهلوان
داوړدول لپچو تر توان پورې نا توان

ځکه زړه پورې تړلی دجهان ؤ
چه په متو کښې رګ د دل وجان ؤ

۱- په (پ) نسخه کښې (لمر موج) راغلی دی .

هسې زیب یې کړ نکریزو په منګلو
لکه بېل له بوټی خاېش شی دسرو ګلو
لاس وندوچه به یې حی علی الفلاح کړ
په عشاقو به یې فرض نمونځ دصباح کړ
په سینه یې جلوه ګردوه غوره سېب وو
مجرب دارو دوا دهر آسیب وو
دهغې ګېلۍ تعریف کړم په کوم درم
چه کاوه ځنې غیبې (۱) دپو مېې شرم
زړه ملا ته یې هر ګز دست اندازی
عقل نه صلاح کوله بې نیازی
حیامنع ګفتګوی که تردې وړاندې
کښود سر په آینه دزانو باندې
چه نظر یې ومرآة ته د زانو کړ
ګونګټ توتې مې یې دطبعې سخن ګو کړ

---

۱ـ په قولو نسخه کښې (غیبې) لیکل شوی دی ښایی چه دقبې ، غوبی ، غوزې معنی ولری .

چه بیان به یې و اصف د ساق اشراق کړ
کافوري شمعې به اور بل په تاراق کړ
پښت پای یې کړ پیغور د ه پرو چارو
د خپل ٭ ور د نګاروپه رخسارو
لطافت یې د تلو به هسې نمای شو
چه له درز یې د ښو لید پښت پای شو
نه تنها مېن شا هد په هغه مخ شو
د هغې هم زړه په مخ د ده تخ مخ شو
آب و تاب د هر یوه بله لمبه شو
بل د بل د صبر ز هد په پو مبه شو
هر یو ګل هسې مېن په مخ د بل شو
چه هر یو د بل هم ګل هم یې بلبل شو
یو د بل و ښکلې مخ ته نګران شو
له حیر ته آ ینه غو ندې حیران شو
دوروخه عشق وښا یست (۱) شو سره جمعه
له یو ې شمعې شوه بله، بله شمعه

۱ ـ به (۱) نسخه کښې د عشق د ښا یست په ځای (عجب مجب) راغلی دی

خارد میني خبن د دواړو په دامن شو
پوري اور دتا زه ګلو په خرمن شو
ګل رخسارو یې سور اور په جلوه بل کړ
دلاله په څېر یې زړه پکښې جلبل کړ
له اغیار و یې پنهم دزړه خبر ې
په نظر دستر ګو کړې سره نا درې
دواړه شوق د ګفتګوی (۱) وا خسته سروپ
ولې شرم لاس په خوله ایښو چه چوپ
هغه رازچه زړه له شو نهو ساته پټ
شو خوستر ګو یو په یو وایه غوټ غوټ
سوال داچه عشق مې جوش کا نه سهېږم
جواب داچه چوپ شه مه وایه پوهېږم
هر نظر به له پردې د واړه واته
یا رې یا به شرم ننګ ځنې ساته
په دار ننګ یې تر بېګا په هزار ځې
وساتلې په ګر ېوان کښې سرې سکرو ټې
چه برې کړې یې وې میني د تلوسېیني
ضرورت کړه هلته شپه په شاهد، وینې

(۲) به (پ) او (ع) نسخو کښې د ګفتګوی به ځای (محبت) دی .

یك تنها دهغه مړی په ګور شپه شوه
با ندې سازه د بلا جفا خپه شو ه

نه همراز چه ور ته رازدزړه بیان کړی
نه دل سوز چه ور ته سوز دزړه عیان کړی

هسې (۱) ځان یې خوړ خوله پټه لکه شمع
د مهرویې د و صا ل په تشه طمع
با ر ې پلا ر د هغې جنې په همت
په ځای راووړ د شاهد تمام خد مت

بې خبر له د ې خبر ې سا د ه د ل
چه طوفان لری په مشت کښې دا ساحل
هم غافل له دې چه ما بل کړی اور
لګیږی لی د ی د دې غریب په ګو ر
په هغه نیمې شپې تیر ې نا ګها نه

په مثا ل لکه تېز تندر له اسما نه
پښتنو په هغه کلې وکړ تا خت
په سبب د قد یمې عدا وت با خت

۱ ـ په (پ) او (ع) نسخو کښی داسې دی (هسې ځان سیزه خوله

سر ومال د هغه خلق اکثر لوټ شو
یار آ شناد فراخی په تنگسه بوټ(۱) شو
هم شاهده هم شاهد بوته په بند شو
څه ناپسند د کج فلك په خاطر پسند شو
که هر څو به یې رویدار آه وافغان کړ
آه افغان کله اثر څه په افغان کړ
هیڅ پرې نه رسېده پوهه چه څه وایی
که پرې نه پوهېده دوی هم وایی بنایی
زړه کړم (۲) جن ولي په خوله له ناځاری
وایه بنه وایی وا ضح قابو ځاری
چه به شهد پرې ترخه لګېده وینې
د هغه فراق خوراك شوې د زړه وینې
خورد شاهده نوش جان څه پښېمانی ده
دا دعشق د رته او له مهمانی ده
څه پېښی کوې فلکه بازې کړه
څه نابنې کوې نا ترسه ستم کره

(۱) په (۰) نسخه کښې (بوټ) دی!
۲ــ په (۱) نسخه کښې داسې ده .
زړه کړم جن ولی په خوله له ناځاری ـــ وایه بنه وایه واضح قابو ځاری.

دا څه سحر څه افسون دی چه یې ته کړې

داڅه ظلم ناحق خون دی چه یې ته کړې

زه په حال د بلبل نه ژاړم چه چون شو

هر چه شو میں عاشق ؤ په خپل یون (۱) شو

تا له کله سره څه و کړه اليوم

چه له باغه دې بیرون کړ د خپل قوم

چه یې نه پیر زو کوی مسلم په کبر

ته جاری په مسلمان کړې هغه جبر

سم له لاسه هسې ظلم ته زړه غونې کړې

چه سندرو و ته تول په ویریې پنځې کړې

لیده نه شی په داد و ر مـد و ر

ستا په طور ا شر اف کش سفله پر و ر

نور به څه بیانوم ستا کمې زیاتې

خدای ته وړې ستا له ظلمه ننواتې

راشه راهغه او به ساقی غم خو ره

چه پرې مړ کړم د غم اور د زړه له کوره

و کړم گشت په کوه و دشت ورشم تر یاره

په وصال یې قصور و اخلم له اغیاره

---

۱ - به (۱) نسخه کښې د (په خـپل یـو ن شو ) په ځای (خپل مفتون شو) داخلې دی .

## خلاصېدل دشاهد دعزيز په کوښښ له قيده سره دنورو اسيرانو

هغه صيد تير خور ده يعني عزيز
سر تر پايه څيري زړه دغم په خريز

بند يو ان د عشقي په کمند
په مجمر د ښکلي مخ سوی سپند

يار د يار د انتظار د شوا خون
تر بېګاه يې و څکاوه په څيګر خون

کله کښېنه کله پا څه مضطرب
زړه (۱) بېتاب په تب و تاب سر په يارب

چه يې و شلېده د يار د را تلو طمعه
په بالين يې بله نه شوه دشام شمعه

لا علاج د آه فر ياد سرو ي په سر
شو دارنګ لکه قمری په نارو سر

ربه څه شو چرته لاړ زما نګار
بيادې خيروی په باب زما ديار

څه بلا لره مې يار وکړ تا خير نن
څه آفت لره فلک شو راته خير نن

---

۱ـ په (۱) نسخه کښې (حيرانی) راغلی ده .

هیڅ مې نه زده نه پوهېږم څه سبب دی
چه زیر لی یې زما دیار جلب دی
دا منګیر دیار ناکام که کامرانی ده
چه باعث زما په هومره پرېشانی ده
په فلك دیار دز په راغی کوم ابر
چه باران زما داونبو نه کا صبر
زه له خپلې بدبختی هسې پوهېږم
چه به ژ پر په دالبږ هجر وکهېږم
دا بحری به مې اور په خونه بل کا
دا یو سپور به په فوجونو ماغو بل کا
نهایت چه یې دیار دوصل ځـلې
بل کړ اور د غیر فکر په خځـلې
تبرا دعقل هوش له چون چراشو
هغه دم لکه مجنون سر په صحرا شو
هسې شان له ښهره ووت په کینې
لکه آه د آهـو منـو لـه سینې
خاصه فوج ورسره تیار مرګی
دم قدم لازم ملزوم اورو لوګی

په یو هسې صحرا و خوت پرو بال ته
چه یې روح د مجنون راغی استقبال ته

لاله زاریې سر په وینو د نخچیر ؤ
ځای په ځای پکښې روغ ځلی د کجیر ؤ

نیستان یې ؤ د غشو له د رمو
و ویستلی نېزه بازو له برمو

سبزه واریې لکه دام کمند کمند ؤ
بې صیاده پکښې صید نښتی په بند ؤ

له اغزو یې څڅېدې د ظلم وینې
لکه اوښې دعا شق په ښو سپینې

خندلو خاریې که شوخې په هسې شان
لکه ګوری د خوبانو کج مژګان

لټول یې لټې په لټې په تأسف
بیابانو نه په طلب د ورک یوسف

صبحدم وربا ندې پېښ شوو یو څو کسه
چه خلاص شوی و د ظلم له قفسه

خوار و زار خسته په آه و په افغان
فریاد ی له تاخت و باخته د افغان

بې خبر يې وکړ تاخت په ټمامه
زړو ښځې يې پــه بند بو تــلې همه

بې له مونږه چه تري خلاص د ښو په دوشو
نور همه واړه په بند د دوی ګر و شو

(۱) لا يو ښکلی ګل اندام چه شاهد نام ؤ
برا يې زمونږ پــه کلي کښې مقام ؤ

هغه هم لکه دسته د تــازه ګلو
بوت تړلی هغه قوم په وهــلو

چه يې لګېده په غوږ و دا نغمه
د عزيز په زړه ماڼې کېښووه تغمه

له غېرت نه نيم بسمل بې هوشه پر پروت
عقل هوش يې د جنون په پنجه (۲) کښېووت

چه يې زه مونــده هېڅ تــه مـا سوا
بې له مرګه د دې رنځ دارو دوا

۱ ـ دا مصرع په (۱) نسخه کښې داسې ده : (لا يو ښکلی شاهد نام يو ګل اندام ؤ) .

۲ ـ په (۱) نسخه کښې (چپه) ده .

چه یې پورته بې تابۍ له خاور سرکړ
دا خطاب یې په یارانو جلوه ګر کړ
چه اختر مو مبارك د سر بازی شه
شها دت مو وسیله سر فرازی شه
دا څه عمر څه ژوندون دی بې جرمته
دا کوم شرم دی کوم درم بې همته
چه شاهد په بند بندی مونږه آزاد یو
دی په داغم واندوه کښې مونږه ښادیو
هر نفس د زند ګۍ شرمند ګی ده
له بې آبه ژوندمرګ خورسندګی ده
ښه یو مړه په خپلو وینو کښې لت پت
نه ژوندی تر هغه یار پورې بې پت
دا یې ووې نور یې الله اکبر کړ
هغه د مړیې په غلیم مخ برابر کړ

(۱) دوه روخه هنګامه ګرمه د غوغا شوه
ګویا پېښه د قیامت شور و غوغا شوه
له دې لوریه ښه ځوانان په جنګ مېین
بو تر بله جنګ ته وړ اندې معیین
نهایت د جنګ په وخت نامهربان
له غیرته په خپل ځان باندې غضبان
سر تر پښو پورې په اوښو کښې دی نغښتی
له کینې په خپلو (۲) وینو کښې ورغښتی
له یارانو شو د توړو د تفنګ
د سرو وینو رود روان په یوه د رنګ
هسې زور و کړ آفت په هغه وخت
چه ګو ښه کړ سلامت ځنې خپل رخت
رحم پاڅاوه له زړو نو بې رحمه
موندنه شو بوی بندیا د د بې غمه

۱ – دا بیت په (۱) نسخه کښې نه دی راغلی .

۲ – په (۱) نسخه کښې داسې راغلی دی : لکه کینې په خپل اوښو کښې ورغښتی .

هسې صافه تیر باران د جنګک هوا کړه
چه یې ځای په ځای غنچه د زخم وا کړه
د ښیښې په څېر بې سر و ګر د نو نو
اچو لې پی د ر پی و ینې پـه منو نو
ګا ه به مغ د مړ نو جلوه د ګل کړ ه
ور ستو ز خم د نا مر دو نامعقول کړ ه
نه له هغه لو ر یه عجز و تأ مـل
نه له دې لوریه ز ړ ه سو ی ا و تحمل
په د ا شان یو ه ګړ ی یا د و ه ګړ ی
سر ه و نښته د جنګک د کا ر ا ړ ی
چه کو تا ه معا مله د جنګک او ږده شو ه
بخت کړ ځا ن ځنې ګو ښه طالع اوده شو ه
و عز یز ته تېغ په لاس راغی په جنګک
له کینې سر ه سو ر شین لکه پلنګک
چه نېزه کړ ه نېز ه با ز تر سر چا پېر ه
چو ر لېده شو ر دقیامت ځنې ګېر پېر ه
د غلیم د ړ پر و و ینو په د ر یا ب
لک سر و نه ګر ځېد ه لکه حبا ب

زدو ګير يې په د ښېنو هسې قيامت کړ
چه يې مرګ ور ته بهتر تر سلامت کړ

څو چه مل وو ر سره نصر من الله شو
د عزيز د راز منزل ګوره ګوتاه شو

په غليم شوه ماتې ګلهوه ناګمانه
څنې نه خوت بل اواز بې الا مانه

د نېزو په ځای يې ګوتې د زنهار
آخر و نيولې په عجز انکسار (۱)

چه يې نه ليده قابو د دست مردې
پای مړ شي يې کړه اختيار له نامردې

ژوندي و تښتېده لاړ سره په ماتې
مړه فی النار وو السقر شو هلته پاتې

چه دا فتحه د عزيز په بخت نصيب شوه
د ښادۍ پېچه (۲) هېره د رقيب شوه

---

۱- په (پ) او (ع) نسخو کښې (انکون سار) راغلی دی

۲ - (پېچه) دا مصرع په (پ) نسخه کښې داسې ده :
( له ښادۍ په چېچه بهره د رقيب شوه )

را غی ښهر ته پخپله د احسان
له زندانه د شاهد خبر پرسان
چا ورو ښود له لاره دوراړه یوسف
مشرف شو په دیدار دورك یوسف
د زندان له حاله څه وایم څه رنګ ؤ
په تنګی د میږ ی تر ستر ګو تنګ ؤ
لکه بخت د بد بختانو تاریك تور ؤ
له همه بلاؤ ډك د عاصی ګور ؤ
د ظالم د زړه په شان تور اندرون ؤ
د مظلوم دحال په څېر خرات بیرون ؤ
په داهسې تنګ تاریك ځای کښې اسیر
د شاهد غوندې ګلرخ بندی امیر
هغه نجل (۱) چه د شاهد ماه منیر وه
له شاهد سره اسیره هم ځنځیر وه
په یوه مزې پیلی دوه ګوهره
یوله بله کړه یو ښتنه هره هره

۱ـ دغه کلمه په (۱) نسخه کښې (جن) ده .

یوو بل وته کاوه ار شاد د میني
دوه روخه محکما وه بنیاد د میني

یو د بل د عشق په میو د یوانه
یو د بل د مخ په شمعه پروانه

نور به تل دو مغزه بادام په شان
اوسو مونږ په یوه پوست کښې زړه نشان

د واړو یو مجبله د بل په تسلي
په دارنګ قول وقسم وکړ په خولي

که مونږ خدای له دې زندانه کاندی خلاص
تر قیامته به شو د بند دا خلاص

و به نه و څو له خپل د پسه بلې خواته
خلاص له و یاره داغیار مقصودو خواته

په داعهد سره شوو د واړه راضی
نه پروا د محتسب نه د قاضی

دم په دم به ور کاوه شاهد رعنا
هغې جنې له ره پاڼو په داوینا

چه به اوس راشي عزیز لکه لمبه
بل ز مونږ د جور ظلم په یو مبه

هغه دم چه له دې حا لــه شی خبر
په د ا یخ به جلوه ګر شي لکه نمر
دم په دم منتقم خدای پرې یاد وه
له ز ند ا نه د غم ز ړه آزا د و ه
دوی په دا ګفتګوی کښې وولاګرم
چه عاشق په دروازه راغی په درم
په تلوار یې قفل لرې د ځنځیر کړ
همت ناك دز ړه خواهش په ستر ګو ځیر کړ
له زندانه یې بهرون کړه دوا ړه ښکلی
عاشقان شو و سرفراز ر قیبا ن غلی
چه شاهد ماه کنعان له بنده ووت
ښاپیری دد یوو د دله ګنده و وت
آفتابی حسن یې طور د مهتاب کړ
لا یې زیات نرمې لیندې د غشی تاب کړ
که تاله یې له شوخۍ په ګــرمۍ وهی (۱)
اوس یې زړه له سنګدلان په نرمۍ وهی
شکسته رنګك د آهنګك د ګلعذار ؤ
زر غو نه یې نسترن په لالــه زار ؤ

(۱) د(پ) ا و (ع) په نسخه کښې داسې دی :
که ها له یې له شوخۍ په گرمۍ وهی ۰

ارغوانو یې مېوه زعفرانی کړه
آینه یې د جهان په حیرانی کړه
ډېرو وړو یې ذتن په سمن زار کښې
غوړولی ارغوان ؤ په رخسار کښې
چه شاهد شو د عزیز په نظاره
د کاغذ زرافشان په شان ښکاره

سفیدی یې راووړ و هم د سیاهی
صفا سپب اخستی ګر د لکه بهی
سرو پای یې منور په شست وشوی کړ
تمام تن یې د نافې په دودخوشبوی کړ
وای غوست لوی سروپای په شان د ګل
ملا بسته په قتلول شو د بلبل

د عزیز چه تللی عقل راغی سرته
ملتمس په دا ګفته شو و د لبر ته
دا چه تاسره په خنګ کښې هم زانو وه
څوك وه؟ خورولورد چا، کومه بانووه؟
دا د کوم باغ و چمن سروې مېوه وه؟
داد کوم فلك ملك میا شت ډېوه وه؟

دَه وې دا ده چه زما د درد دوا وه
دا فتنه ده چه پرته زما په خوا وه
دا لمبه ده چه یې کور دی زما سوی
دا جذ به ده چه پرې زه یم مجذوب شوی

دا کاکل دی چه یې زه یم بندی کړی
دا رخسار دی چه یې هوش دی له ما وړی
دا لبان دی، دا مژګان دی، دا چشمان دی
چه بې شکه زما درد زما درمان دی
چه یې ما ته رسولی دا آسیب دی
نور څه نه دی بوی دد ې دزنې سیب دی
چه دو څار زما په سر هو مره ها هو دی
نور څه نه دی په طلب دد ې آهو دی
نه خپل واک را پاتې شوی نه ادراک دی
زما زړه تړلی صید دفتراک دی
چه په ما یې قایم کړی دا قیامت دی
یار ره دا فتنه انګیز قد و قامت دی
دوی په دا ګفت و شنود کښې وو له راز
چه جد ا څخنې په دور شو شاهد باز
و نغری (۱) ته د خپل کور په دو په څخغاستې
هغه جنې و نیو مخ په شان د میاشتې
چه هر چاده آشنایې نیولې خپینه
عاقبت به جد ایې شی و رته پېښه

---

۱ به (پ) نسخه کښې (و مغرب ته) راغلی دی.

## استول دشاهد دبوډۍ مکارۍ وهغی جنی ته اؤ وئل

### دهغې دپلار له کوره په شاهد پسې

په دارنګ راته بلبل د انجمن

ستایل ګل و سمن د دې چمن

چه شاهد دهر شاهد دسترګو خار

لکه ګل په مخ نګار په زړه انګار

یو څو ورځې په صحبت کښې دعزیز

وساته په زړه کښې پټ مات شوی خریز

ؤ له نوې ناچاره د ګل په شان

خواه ناخواه په زړه پرېشان په خوله خندان

که ظاهر به ؤ له خلقه سره ناست

پټ پنهم به یې په یار پسې زړه څغاست

په ظاهر به د نوروز د صبح نمر و

په باطن لکه عاصی باندې محشر و

په ظاهر یې له مجلسه راز و باز غوښت

په باطن به یې دخپلې دچارې ساز غوښت

چه یې غوښته بیا یې موندهسې زاله

مکر جنه حیله ګره کهن ساله

له هلکه (۱) پدر کشته مادر زنه
په ډېر مکر اوښ وبا سه له روزنه
دم په دم دمکاری په تخم کاشت
را ختلی د فتنو په فلک میاشت
په رښتیا ؤ یې تېری کاوه دروغو
په افسون به یې کړ خوښ جنون دروغو
وه په موقې کښې ددې دبې نمازی (۲)
په زر ګونو کارسازی دغه بازی
چه به تېره په مجلس کښې تر ناموس شوه
په یوه شپه به د څو شمعو فانوس شوه
په څوانۍ کښې بې خبره بر ده باره
په پیری کښې وه ونو روته تیاره
په یوه دم کښې خندانه هم ژړا لا نه
په سل شانه د بد کارو کار چالا نه

۱ـ له هلکه یعنې له وړکتو به.

۲ـ په «پ» او «ع» نسخو کښې دا مصرع داسې ده
«وه په موقی کښې بې وه بې نیازی»

د ځوانۍ په وخت عاشقه عاشق بازه
په پیري کښې مکر جنه حیله سازه

هسې شان وه په سر سپینه په زړه توره
چه شیطان به ویرېده د دې له توره(۱)

له جمله بلا و تېره بوړۍ داوه
له اوژرند و تلې سپړۍ داوه

سم له لاسه به یې ورکړی په مزاح
د وګړو خویندې لوڼې په نکاح

بې د پلارو مور پوښتنې مکر جنې
ورکولې لونې انو لره جنې

خو په خوله ورته ویل شی چه بوډۍ وه
کټه عین د قیامت بده بوږنۍ وه

چه شاهد هغه مکاره پخته کاره
دخپل کار د پاره بیا مونده وزګاره

په دارنګ یې خپل مشکل ورته په لب کړ
د و باره یې ګشایش ځنې طلب کړ

---

۱- په (پ) او (ع) نسخو کښې (شوره) راغلې ده.

چه انا! په فلانې کلې کښې مقامه
یوه جن ده ګل اندامه و فا نامه
د خپل دور د خو بانو سر د فتره
په ښا یست حورو پری بلکه بهتره
له عالمه رمیده و ما ته رامه
پسې و وتم د صبر له احره امه
په پرده (۱) کښې د صبا په هزار درم
لری ما سره صحبت د میني ګرم
هم یې کړې څو وعدې له ما سره دی
یکښې کوټ د خلاف نه کړم چه کره دی
ورشه وې ګوره ته په خپلې سترګې
سازو بازر از و انداز د هغې بزرګې
که دې و لیده په ګړ ی ه دوی سره راسه
هم هغه شپه یې له کوره راو باسه
لکه ګنج هسې یې کښېنوه مستوره
په پټ ځای کښې د غماز و له فتوره
دغه پسه ما خبر کړه مدد ګارې
چه مې و لګیږی سترګې په ننګارې

(۱) دا بیت په ( ب ) نسخه کښې نشته .

له تا دا هو مره مدد غواړم نور بس

که مې وکاږې له ستر ګو دغه خس

بل دې ستا په خدای سوګند وی زما مورې

په داغم کښې شو چندہ تر مور غم خورې

چه دا اسرار سا ته په زړه کښې له ويلو

واقعی لکه هېر خوب هسې تر تلو

هغې زرا لې بلاغو اړې زاتر سانې (۱)

داد شوارې په سر واخستې آسانې

مور د سلو شېطا نا نو شوه روانه

د نېکی په کار زړه په بدی ځوانه

په پو ښتنه ور غله تر هغه کلی

سل چلونه د فساد په زړه لیکلی

(۲) د ملک په دروازه راغله درون شوه

دراستی په سر دیه ووو ته بېرون شوه

و ملک ته یې دا رنګ په امده ژبه

د دروغو پېغام ساز کړ چه صاحبه

---

۱ – دا کلمه په (۱) نسخه کښې نا بر سانی ده

(۲) دا بیت په (۱) نسخه کښې نشته .

چه ویلی فلانی یار په تا سلام دی

دوباره یې درته کړی دا پیغام دی

چه لر مه یوه لور پری پیکره

له حیا په ستر ګو ګوره په غوږ کره

که قبوله یې په عقد د فرزند کړې

په دا داد به هې خورسند او سر بلند کړې

زه یې تاته راستولې په دا کار یم

زه چه تشې شلومبې شار بم په کړ کار یم

که دا ستا هم بخت بیدار وی طالع یاره

دا خبره به قبوله کړې بې و یاره

دا نسبت به غنیمت و ګڼې دله

دهوس په خوله به ناری کړې بد له

دا ساعت به نښه واخلې هم به را کړې

بر طرف به دو ګړی چون چرا کړې

که هوښیار یې بخت به زه وهې په لته

سمه لار به د مکې نه کړې غلطه

په ظاهر که یې له زویه کړ مذکور
په باطن یې کاوه کار د ده د لور
ساده دل په مینه وا خسته دا مینه
بل جواب بازدې ونه شو بې آمینه
(۱) هغه دم یې دخپښۍ دادو ګرفت
سره و کړ په دا دروه په دا فرفت
پلار وزوی په ښادیه مست ومسرور
له دې غمه ناخبر چه مې ځی لور
ورکېده مبارکی هوس افزایه
له فلکه جو فروش ګندم نمایه
له دې کاره ورته هسې په سلام شو
چه ګویا کښېدبوډیه مریې غلام شو
هسې شان یې په عزت وکړه پالنه
چه له لور سره یې ځای ورکړ لالنه
چه یې بیامو ند په خالی خلوت کښې ښکار خپل
هلته دا شوه په تالاش د اصلي کار خپل

---

۱ - دا بیت په ( ۱ ) نسخه کښې نشته ۰

خو بوه ژبه یې واخسته ور سره

اختلاط و انبساط کړه و ر سره

په خبرو کښې ناګاه شیرین ز بانې

په مطلب تر پلاره موره مهر بانې

دې (۱) قرار دشاهد نوم واخست په ژبه

هسې شان چه جنې واورېده صاحبه

دانامه چه یې په سر دزړه نغمه شوه

وبوده وته ګویا په دا نغمه شوه

راته وایه دا نامه ده دکوم ژوی

چه مې زړه له محبته پسې چوی

دا نامه ده که داور بلې لمبه ده

چه مې پورې نن دصبر په پومبه ده

وې یې لورې دانامه دهغه کس ده

چه خوړلې یې شپتی (۲) ستاد هوس ده

ستادمینې په اثبات دی هسې محوه

چه یې نه خوګ سکرپېژ نې نه صحوه

۱ـ په ( ۱ ) نسخه کښې ( تقریباً دشاهد نوم ) ذکر دی .

۲ ـ په ( ب ) نسخه کښې (شپتی) (پشتی) لیکل شوې ده مګر غلطه ده معنی نه ور کوی .

که د نور خلق معشوق ښکلی دلبر دی
بارې ستا دعشق په تاخت زېرو زبر دی
په ارزو ستاد وصال خراب تراب دی
ستا له غمه نیم بسمل په اضطراب دی
په هر ځای چه تازنځی کښېنی پاڅی
ستا له شوقه لکه موم په لمبه نا ځی
زه یې یمه د تمام پیغام قاصده
که رخصت وی څه و وایم له شاهده
وې یې چوپ شه له ویلو ځان وژغاڼه
بې ویلو را معلوم شو مطلب واڼه
زړه مې ترق وچاود له ډېره انتظاره
زه به درو مم ته دلې اوسه قراره
چېر نه ځی زما تهمت کا په تاپورې
که دې بیا مومی، ازار بیاموومې مورې
دې وې ښه وایې قربان دې شم ترخولې
ته ور درومه زه به اوسمه دلې
چه بېګاه شو وې یې پاخه لورې درومه
خالې کړې حبشو لارې له رومه

دهمت په پوندو اس دسمې (۱) تېز کړه
چه يې زه درته ښيم هغه خوا خېز کړه
له دې ځايه دی يو ځای لرې دوه کروهه
تنګك تاريكك لكه لحد خالی له دروهه
هغه ځای يوه فقير دی کور نيولی
په تنګی سره دی ماپه ورور نيولی
وسواس مه کوه ورځه په خاطر جمعه
هلته کښېنه په تياره کښې لکه شمعه
وهپچاته به آغاز نه کا داراز دی
په ټول عمر دی لهما سره هم راز دی
څو ځلې دی ماکتلی از ميلی
چه يې راز نه دی زماچاته ويلی
که لهحاله دې پوښتی چه څوك يې لالې
وايه لور دهغې زالې كهن سالې
ځه په دا ګړی ورځه دوتو وخت دی
چه مشغول په آب و نان خلق يك لخت دی

۱ په (پ) او (ع) نسخو کښې دسمې په ځای د (سيمې) کلمه ده.

زه به هم در پسې در پشم که خدای کا
خدای به دې پل ددغه یار پسې پای کا
هغه دم له کوره ووته په سخه
ننګ و شرم ته یې شا کړه یا رته مخه
محبت کره کورو کره هسې ر ننګ
چه نه شرم یې په یاد راغی نه ننګ
لاس په لاس په دې پروستر ګو کښې صاحبه
د پېرې په څېر له ستر ګو شوه غایبه
که یې مور واخست خبر په آب و نان
بیا یې نه مونده وفا په خپل مکان
که هر څو یې یو ځای بل ځای وکتله
نوم نښان یې مو نده نه شو و الو تله
ګنګوسی په کاله ګډ شو دپو ښتنې
پری یې نه بنو په هیڅ ځای، ځای دغو ښتنې
عاقبت نا امیدی سر په زا نو کړ
د حیرت په دریاب ډوب غم د با نو کړ
پلار و مور یې خبر د زهر و په خوراك
ور ور یې تیغ په سینه ا یښی د هلاك

په(۱) پاکی د هغه خدای عالم الغیب

هم شه پېش چا ته دخو رو د لور عیب

حادثې دی په جهان کښې گوزا گو نې

بارې داده نهایت بـده بد غونـې

که دلور په زېږېده خوك ژاړی ښایی

که یې مر گك چېرې له خدایه غواړی ښایی

خصوصاً په دا فساده زمانه کښې

چه یې پاتې نه شو آب په دردانه کښې

(۲)هسې چارې به اشراف و کا ندی یاره

چه یې نه کړی چوهاړی له شرم وعاره

نن وگا نده خیر عار، شر افتخار شو

دگلو نـودور لا هـدوردخـار شـو

زمانه درذاله ؤ پـه طـر ف شوه

څکه بره پایه کوزه دشرف شوه

چه یې نه شرم په ځای وی نه یې درم

نن ساعت به وی بازار د هغو گرم

---

۱ــ په (۱) نسخه کښې به بز گی ا غلی دی .

۲ــ ا بیت په (پ) ا و (ع) نسخو کښې نشته.

چه بې شرمه بې حیا شوخ یاوه گوی وی
هم هغه به له میدا نه وړی گوی وی
ای له لاسه د فلك په زړه ورژ لیـه
د جهان په ویرژلیو و پر ژ لیـه
هواره دا بیهوده سوز و گداز کړه
د دانش په تله تول ددې انداز کړه
چه کوم کار ورځخه شوی په سلوك دی
نه یې خوار په مراد پرینښی نه ملوك دی
او سنی نه دی چه تر ې ژاړې کوالې
قدیمی دی ددې زالې نا خوا لې
راشه ای زما په غم سوی ساقی
لامې شته په سر کښې هوښ څه خو باقی
راکړه مې خرد ر بای ږ که کو نړی
گوندې شم له مکره خلاص ددې بو ړی



## خبر یدل دشاهد دجنی له وتلو او رخصت دده لـه

عزیزه دفقیر دتللو او تلل دشاهد په هغی جنی پسی او شاکول دعزیز افکار ته.

چه سباصبحي نا تر سي هلك خو يي

په پر هر دهغه قوم کړي ما لګي تو يي

نه يي تاب ددي خبري پټ سا هه شو

نه يي چاو ته له شرمه دم وا هه شو

داصلاح يي سره وکړه په خلوت کښي

چه رخصت کړ وداړوه په دا ساعت کښي

مبادا که له دي حال ، خبره داشي

په عالم به يي له خولي شهرت پيدا شي

چه له شو نظو جلوه ګر حرف درخصت شو

وبوړه ته ميسر د تلو فر صت شو

اور لګا زدي چه اور ولګاوه لا ړه

هغي جني لره را غله لګه غا ړه

له هغه ځايه يي بو تله بل مسکن ته

له غه پسه يـي خـبر وکړ ميـن ته

چه مې راوسته راځه فلانی مقام ته
د ناکام (۱) له شرمه کوچ کړه دل آرام ته
چه ترغوږه دشاهده هو ندا شوه
د امید پروسه غوټچه یې په خندا شوه
د نفاق له ملکه راغی خپل عاشق ته
دلباس په خندا شین هغه صادق ته
له اوله یې مهره د مهر ور کړه
دوباره یې پرې بازی د مطلب سر کړه
دخندا په آب یې ګرد کړ دمخ لرې
په بوسه یې تر حلق شکته کړې شکرې
له غه پسه یې دا رنګ په دوه ګوهرو
معلوم کړه ور ته زیږ (۲) د مراد په زرو
چه راغلی له وطنه یو فقیر دی
له دی ځایه لرې دوه کروهه ځای ګیر دی
نهایت په دم قدم با برکت دی
بې فایدې یې نه سکون نه حرکت دی
چه صیقل د توجه ور باندې کړی دی
د زړه زنګ یې آئینه، صفایي پر یړی دی
هر نفس وهر نګاه له صفا زړی
د نسیم په څیر غوټچې د امید سپړی

۱– په (پ) او (ع) نسخو کښې (د نامه له سرایه کوچ) راغلی دی .
۲– دا کلمه په (پ) او (ع) نسخو کښې (زر ګر) ده .

بل یې حق د آشنایۍ لرم په غاړه
بل (۱) به نه وی څوك ژوندی په داو یجاړه
په آرزو یې د لید و یم صم بکم
په دا باب که عنا یت شی را ته حکم
زه به ورشم په زیارت د هغه صاف
د بشر له شره پاك فلك او صاف
لاس و پښې به یې کړم ښکل په ارادت
ترې به وغواړم دعا د سعادت
د نظر په شان به بهرته زر په زر
جلوه گر شم ستا د ستر گو په منظر
یو دوه کسه خدمتگار له خدمتگار و
راسره کړه په خدمت بومیا (۲) دلارو
لا علاج هغه عزیز د غم لا یق
له ناکامه د خود کام معشوق عاشق
په هر حال کښې رضا جوی د خپل دلبر
د فلك له د ر و هه در ده نا خبر

۱ــ د (پ) په نسخه کښې «تل دی» .

۲ــ بومیا «لار ښود و نکی» .

په ر استی د تلو رخصت وکج بازور کړ «۱»
ساده زړه ته یې دصبر آواز ورکړ
چه محشر یې دوداع خور صفاآصفاشو
ترې روان هغه شوخ چشم بې وفا شو
دګړ ی ه په وعده لاړ شو تر قیا مته
هی تو په شه له د ې هسې علا مته
ددې دور له یا را نو تو به تو بـه
له لړ مو له مـار ا نو تو به تو به
پرې «۲» اصلي په اخلاص مه غو لیږه در وهی دې
په معنی کښې تر سبزی لا ندې کو هی دی
د لباس په خو له «۳» خو د ر ای خود آ ر ای دی
پنا ه و شه جو فر وش ګندم نمای دی
په ظا هر لکه نبات هسې خوا ږه دی
په باطن ز هر ګنلې یر تر خه کا ږ ه دی

۱- په (پ) نسخه کښې (ګنج با ز) دی.
۲- دا مصرع په (پ) او (ع) نسخو کښې داسې ده:
(پری د خو لې په ا خلاص مه غو لیږه د ر و هی د ی.)

۳- دا حصه په (پ) او (ع) نسخو کښې داسې ده:
(د لبا س په خو له خود را په او خود رای دی.)

په مطلب لکه پیرو تې در ځار یږی
بی مطلبه نر نا حقه و پزار یږی
مخامخ دې پلاراووروړ په نفاق بولی
په باطن دې په شکوه عیبو نه تولی
په تنگسه کښې دې تمام ښځې په ژبه
په راحت کښې دې آشنا نه وی صاحبه
ته په مینه سره زړه ور کړې دی سړی
دی دستا له مهره موږ گرځی ته وړی
که مې وواهه هر خوور با ندې شخو ند
یا رانې دهغه یار رانه کړ خو ند
په میزان د سود و زیان و اړه ځای ځای
را بشکاره شو جو فروش گندم نمای
غرض داچه په بازار د آشنایی
مو نده نه شی درستی(۱) له روشنایی
په تیاره کښې د نفاق چپ ور استا
ته زما د کنډر غلا کوه زه ستا

(۱) په (پ) نسخه کښې (وا بستی) دی .

دا وینا ده لکه نمر هسې معلومه
چه هر چا کړه آشنایی د فریب لومه
یکښې نښتی د هوا زیرک مرغونه
غنی خدای دې نه کا بد د چا مرغونه

بې له دې چه آشنا یی نه کړې حمیده !

په بل شان دې خلاصی نشته له دې بریده !

که عزیز و شاهد زړه ور کړی نه وی

په دا هومره درد و دوك به نه وی سوی

چه خود کام آشنا په مرسته د خپل کام لاړ

له عزیزه نا آشنا په اوږده کام لاړ
بې وفا دوفا نا مې ترا تا ق شو
له نفا قه سره جفت له راستی طاق شو

چه یې ولکېدې ستر ګې په نګار خپل

ست وپت یې فراموش کړ دا فګار خپل

هغې بد د قبیلې نام و نشان کړ
ده ګنده د آشنایۍ پاکیزه شان کړ
نور به څه وایم چه لاړ په کومه خوا
دواړو ځان په بې آبۍ کړ رسوا
راشه ای په غم شریکه ساقی، یار لاړ
نه پوهېږم چه له ما په څه غبار لاړ
(۱) هسې تو ندمستانه مې راکړه په غاړه
چه مې و وځي یار اغیار له فکره دواړه

۱ - په (ع) نسخه کښې دا مصرع داسې ده (هسې تو انده لښانه راکړه په غاړه)



## بې قرارئ د عزيز د شاهد له هجران او خبريده د عزيز له بيوفايئ د هغه ګل خندانه.

هيڅوک مه وايه عزيز ته دا خبر
چه په دروه درڅخه لاړ دروهی دلبر

نور دې زړه لرې ليده چېرې بايده
د دوستۍ له شرمه درم کا بايده

که پرې پر بوځی دغه تندر ناګمانه
هغه دم به يې زړه وچوی له ارمانه

خود به حال صاحب د حال په رموز پوه کا
يو په يو به يې خبردار د يار په دروه کا

خود کرده به شي ور پېښ هر چه ور پېښ شي
ګوره څه فتور ور پېښ له دغه بر پېښ شي

د خپل يار له بې رحمۍ منکر عزيز
مات په زړه له نيرنګۍ د فلک خريز

د طالع د کج بازيه بې خبر
ورا تلو ته منتظر د خپل دلبر

چه به اوس په وعده تللی آشنا راشي
بې خلله به سېغی په وينا راشي

چه وعده درا تلو تېره شوه يك (۱) لخت

اشتياق (۲) يې په مشتاقو شو لا سخت

ګله وځه ګله ننو ځه نا بناد

ګله کښېنه ګله پا څه په فر ياد

ګاه لارغه د يار د باد په (۳) تله توله

ګله يار وعده خلاف د جهان بوله

ګاهې عذر معذرت کوه داو ايه

ګاهې شوخ و بې پروا بې وفا ستايه

هيڅ مې نه زده نه پوهېږم څه سبب دی

چه باعث په معطلۍ د شکر لب دی

وکړ يار په څه کېل هو مره لارغه

کوم صياد ونښکه وزر ددې مرغه

يا څه عېش يې دامنګير ددې خو دکام شو

يايې لنلې د مروت له لوريه ګام شو

(۱) په (پ) او (ع) نسخو کښې (تروخته) .

۲ – دا مصرع په (پ) او (ع) نسخو کښې فرق لري (اشتياق هغه مشتاق و نيو په سخته) .

۳ – په (۱) نسخه کښې (د ياد په تله) دی .

ښه په ما بلا پسې یاردې خوشحال وی
معشوقان خوش وخرم مین ملال وی
درا تلو تر حد چه تېر د شاهد د رنګ شو
په عزیز د صبوری جهان تنګ شو
آرام رم و ر څخه و کړ عقل نقل
په نیمګړې ملګری یې مل ؤ (۱) عقل
د زړه زخم یې ترخولې سرایت وکړ
لا علاج یې په فریاد شکایت وکړ
دفریاد په وخت یې شوه زما صاحبه
لکه شمعه آتشبار ره د ده ژ به
د زړه وینو یې له ستر ګو واهه موج
باندې څغله (۲) لورا لور د بلا فوج
خوله په آه ستر ګی په اوښو زړه په درد
درست دغم په تا خت سره ؤ ګردو ګرد

۱ ـ په (پ) او (ع) نسخو کښې د اسې راغلې ده (چه نیمګړې ملګري و د کم عقل)

۲ ـ په (پ) او (ع) نسخو کښې (راغله) دی

هر ساعت یې په سر کاڼې هغه ور ځې
و رول د هغه یار د غمو ور یځې

چه تر غوږ به یې آواز د مجاهد شو
و رولاړ به زر په طمعه د شاهد شو

چه شاهد به یې وزه لید هلته چېر ته
له کمره به دی لګید ه خوا بېر ته

بیا به کښېنا ست و یرژ لی د م ختلی
دمر ده په خیر له ګوره را و تلی

په حسرت به یې له لا سه د آسمان
سره ټکک و هل لا سونه په ارمان

چه خواری مې ابته محنت بر بادلاړ
یار مې دا ګوزاری ابه الا باد لاړ

په دا حال هسې پو هېږ م بدشا مته
چه موقوف دیار دیدن شو تر قیامته

هرګز نه یم رغېدو نی رنځ مې اوږد شو
دردو غم عالم په ځای را باندې روږد (۱) شو

---

۱ ـ روږد ـ آموخته

دی په داتپ د تپش کښې په لړزان ؤ

دآسمان ځمکې ترمیان دی اویزان ؤ

چه ترې راغله هغه دوه آسه لالنه

چه وو دهٔ و رسره کړی په پالنه

له خجلته شرمنده کوز کوری غلی

دشاهد دروه په اور زړه ونه داغلی

په خوله آه آتشی په زړه خسته

رنګ تغیر عقل بر هم قدم بسته

دا خبره لکه تند رد آسمان

دغز یز په تندی پربووت ناګمان

چه یې مونږه یوه کارته و لیږلو

په غیبت یې له حضور ه و کړلو

که بیا راغلو هغه ځای هغه ځوان نهٔ ؤ

میخانه تشه پرته وه مغان نهٔ ؤ

که یعقوب شوندې موغوښت په تأسف

هیڅ مو نهٔ مونده سراغ دورک یوسف

تم تری په هغه ځای لکه پیری شو

نهٔ پوهیږم چه د کوم ځنګل مزری شو

که مو و لیده هر څو خوا و شا
نه شو موند په هیڅ ځاو کـلا حا شا
په دا رنګک چه دا بخرۍ سره لمبه‌شو
پو رې اور د صبر شرم په یومبه شو
هنګامه دآه فر یاد شوه هسې ګرمه
چه د کفر سنګد لي شوه یکښې نرمه
تصور چه یې ددې ماتم تصویر کړ
ځمکې خاورې په سرلوستی فلک ویر کړ
هر یلو تـه خبـر لا ړ ه پر یـشا ن
یوه را نه و ړ و دورک یوسف نشان
و دیار و ته یې و استاه قاصد شو
خبر ګیر کلی په کلی د شا هد شو
بې زا مې چه به یې اخسته په ژ به
بل خبر ځنی را نه و ړ چا صاحبه
په هر ځای چه به ګمان(۱) لووه ګډاهی
دودو لـه پـه تبـه یـا کـړ اهـی

۱ـ په (پ) او (ع) نسخو کښې (یقین) دی.

چه په وهم سراغ ور کړ په هر چېر ته
تفحص په نا میدی راغی په بېر ته

دطلب په پښو سو ده اس د آرزو شو
په امید د نا میدۍ جواب پېر زو شو

چه پرې بند شوې واړه لارې وو صال ته
زور یې ځان ژاړه د ارزنګ د یار و خیال ته

چه داولی ؟ په څه ؟ څه زما تقصیر ؤ
یار په کوه یوه چار له ما د لګیر ؤ

چه د اهسې بې پوښتنې له ما لاړ شو
خواه ناخواه زما د وژلو په ویلا ړ شو

چه مې لاړ شو لکه روح هسې له تنه
بې علاج راپاتې زه شو بې کشتنه

ته او تله ، زه او سلګۍ د زنګدن
هر چه وی ثواب عذاب ستا په ګردن

وایه ای په ظلم زور بې ګناه کشه
تا په څه سبب کړه خو ښه دانا خو ښه

دا دکوم د بس و د یار رسم و رواج دی
چه خوښ کړی بې خود ی (۱) داستا مزاج دی
دا چه کړې تا له ما په غداری ده
وایه دا مسلمانی که کافری ده
چه لمبه مې ستاد هجر په زړه ځری
تر لمبو لکه مجمر ژاړم بخری
ستا دمهر له سر دیه نژ د ې لرې
رابېدی زړه محض دمرګک له سره ارې
له آشنا د آشنایی دم وهل څه ؟
بیا داهسې په هجران سره درو هل څه ؟
په دو ستی کښې دروه درب عشو ه ، فریب
لکه کفر په اسلام کښې وی بدزیب
ته او دروه زه او راستی سره سپار لی
زر به ریبو که یې خدای کا خپل کړلی
په ژړا چه دشبنم ګل تبسم کړ
زر په زړیې ماته خوله دخزان سم کړ
چه خندا په سوزد شمعې کاله قبحې
ځکه خېژله دو ینوې که شوه دصبحې

---

۱ـ په (۱) نسخه کښې (له خو دی) داغلی دی ۰
۲ ـ دا بیت په (پ) او (ع) نسخه کښې نشته ۰

دا یو کور در سره څه وکړ لا لنه
ستا د ا هسې بې پتې ز مـا پا لنه
تردې درده بې درمان یمه په مرګ خوښ
دژوندون دم مې اغزی دی په زړه خښ
څه په ښه را سر ه وکاندی اجل
که مې نه کا پس له دې په ژوند خجل
دا بې یاره ژندګی شرمنده ګی ده
که مې مړ کا عزرائیل نه بندګی ده
په دا کار به شکر د ار شم له الله
که مې وکاږی له آ ننه سره ساه
چه رخصت څنې په غمزه دیار خیال شو
په دارنګه شکوه ګوی په حسب حال شو
چه د ښکلیو دود دستور بې وفایی ده
زر غونه یې په سرشت کښې جفایی ده
دلاله په څېر نیمګړې آشنایی کا
د بریښنا په څېر بې پایه روشنایی کا
هیڅ یې نشته دی وفا په آشنایی کښې
سل سیاهۍ لری پرتې په روشنایی کښې

په ګړی کښې یار اشنا دسلو کالو
هواره دخود کامۍ کا په ناخوالو
ته په مهر سره زړه ور کړې دی سړی
هر ساعت دې په آرزو وی دزړه وړی
له ر ښتینو عا شقا نو یې بلاو ی
دم قدم دد ر و غژ نو په سلا و ی
ته یې شمعه غو ندې ژاړې په هوا
دی دې صبح غو ندې خاندی په ژړا
چه په خوا .. دخپل مطلب راشی خوبان
و ینځی لاس دیار په و ینو شتا بان
دا مذ هب دی دد ې د ورد ښتا نو
چه په قطع د ښمنی کاله دو ستا نو
زه لېوه په تر بیت امو خته کېږ ی
نه خوبان دچا په سرومال خپلیږ ی
بې له دې چه اشنایی نه کړ ې ملا
د دې د ر د بله د و ا نشته ا صلا
کم بختان به دعزیز په دود درو یش
په امیددیوه نوش خوری هزار نیش

## بیان دعزیز دشاهد پەفراق کښې اورسیدل
### لەمجازه وحقیقت وته

چه یې وشلېده دیار دراتلو طمعه

نامیدی کړه ور ته بله، بله شمعه

چه شاهد په ذکر فکر دېو انه شو

دشعور له کوره کلیه بېگانه شو

عقل یې واستاوه په یار پسې جاسوس

اور یې پورې کړ په خونه د ناموس

هواره یې کړه یکسر خپل او پردی

شپه او ورځ یې همخانه شوه بې خودی

هسې شان یې دیارغم لاس په گر یوان کړ

چه یې ملك ته دجنون حکمې روان کړ

داب اداب ور محنې پاتې شو دروغو

په رښتیا کړ لېونی دیار دروغو

نهایت چه د مجاز مینې (۱) او ترکړ

حقیقی معشوق ې لاس دستې ورکړ

---

۱ په (۱) نسخه کښې (دمجازمینو او تر) داخلی دی.

د مجاز په ډ بلو ذرې شو
دصورت په پرستش په‌اور ایرې شو
شوې هغه ایرې را نجه‌ د ده د ستر ګو
یو په سلګه یې شو تېز لیده د ستر ګو
پرې یې څیر دحقیقی شاهد جمال کړ
له نقصانه یې حاصل دغه کمال کړ
دصو رت له کشمکشه په آر ام شو
آرام ګاه یې دمعنو بیت الحرام شو
دصورت دتور تاریك جمال تروته
کړ اغیار معنوی یار ورته په ګوته
چه ور لاندې دیقین قالین بالین شو
بند له ګوی په لا احب الا فلین شو
سور سندل یې دیقین پورې په سر شو
بې وسواس له سر در ده بې خبر شو
هسې رنګه خوا په‌خوا شو له شاهده
چه یك لخته بې پروا شو له شاهده
چه د غیر په نا مه ؤ یار نو مړ ی
کړه کسکر هغه بتان هغه (۱) وګړی

---

۱ـ په (۱) نسخه کښې (بتان هغه شو ز ړی).

(۱) په‌دیدن دلایز ال حسن محظوظ شو
له ا فته دجهت و وت محفو ظ شو
بر طرف یې له خاطره شبهه شك‌شو
له تختې یې دشعور حرفو نه‌حك شو
چه و هلې به یې تل ور ځنې کر یکې
شوې یې ور کې دهغې نو نکې ځر یکې
دخولې زخم دسکوت په تار رپو شو
شکایت ورته په شان دسپند لو شو
خاموشی یې ترجمه دکامیابۍ کړه
وچوشونې ویې نغمه دخوشحالۍ کړه
و سیله یې حقیقت و ته مجا ز شو
وحبیب ته یې رهبر غیر وغماز شو
خدای یې زهر کړه په ستونې کښې‌دارو
شوه‌یې کل شك‌وشکوه له‌زړه‌جارو
دا آغاز چه‌دعزیز په ښه انجام‌شو
خطایی ګوزار رسا دنیك فرجام‌شو

---

۱ — دا بیت په (۱) نسخه کښې نشته.

ما ته یا د دی هغه بیت د مو لوی
د ا مضمو ن پکښې تړ لی معنو ی
عشق همدم لره اګر چه مجازی وی
میدان وګټه اګر چه په بازی وی
که دې زړه د حقیقت په کارسازی وی
مینه مه پر یږ ږده اګر چه مجازی وی
راشه را کړه ای ساقی هغه شر ا ب
چه په څښلو یې شم بې هو ش خراب تراب
دصورت له کوره کله بیګا نه شم
د معنو په مینه پر یمنلم یګا نـه شم



## خاتمه دکتاب په‌مثال ددرخوش آ ب لایق دغو بزو دالوالالباب دی .

ما چه و پیل د ا د ر په با ر یکی

غو بزو ور کړه یو تر بل مبا رکی

چه د آ ب سره هوا یې شوه ولا ړه

دیا قو تو له باز اره ګر می لا ړه

بپر ته وجار ایسته تر کو در دغو بزو

جو هر یا نو ته‌ددې در و په زو بزو (۱)

بل سره نشته دا رنګ دری ګرامی

مګر یا فت شی په د کا ن د نظامی

که څوک غواړی داشراب حیرت انجام

مو نده کیږی دجامی په بشکلی جام

شعر نه دی‌داخو ناب‌دزخمی‌زړه‌دی

یاو تلی‌ور وستی‌دم‌له خو اې‌دمړه‌دی

دا زوبزا(۲) ده‌د کباب‌په اور دپاسه

که پری دی نغښتی‌مخ په‌څو لباسه

---

۱ په ( ۱ ) نسخه کښې په (څوبدو) لیکل شوی دی .

۲ – په (پ) نسخه کښې دا حصه‌دا سې ده (دا ژړا ده د کباب)

یا نغمه د نیم بسمل مرغه دخولې ده
یا مجنو ن ته معمی ښکلې لیلې د ه
یاد و ینو آ با سیند وهلی موج دی
یا له ښهره دحیرت وتلی فوج دی
څو وهی دفکر ژامې باندې شخوند
ز یاتوی زماشکرې(۱)هومره خوند
نه دی کار دهر نا اهل بوالهوس
چه قدم ږدی ددې ناوې په جوس
که یې څوک له مخه پور ته کا پلو
د ښا یست مخی یې نشته هیڅ پلو
د اګو هر د نا ز کی پېیه نه شي
ا ز میلی د و با ر ه از میه نه شي
د ناد ان له وچو پو چو بې پرو ایم
بېهو ده ماتې مېچنې ته څه وا یم؟
که ذ انا پرې ګوته کیږ دی مسلم
ا مید و ا ر یمه لــه عفو ي د قلم

۱ ــ په (پ) نسخه کښې (خبرې) راغلی دی.

دصراف دخولې جواب راته اسان دی

چه انسان دی مع السهو والنسیان دی

له جوابه دجاهل دسوال مانده یم

الف، بې مې لوستی نه دی ناخوانده یم

بې هوده دسرماغزه راخوا ړه نه شی

دا میدان ګاته په توره چاړه نه شی

په کړ لو د صر اف مهر کاه ړشی

دنادان په پوچ ګویې سره څه شی؟

د ا تحفه د با تمیز یا ر عز یز د ه

نه پیشکش دساده لوح بې تمیز ده

نامحرم ته نه ښیي دا مستو ر ه مخ

محرم بویه چه یې ځیر کاندی پوره مخ

له خو بی ې دآ ئینې څه ز ده ړ ندو

شا م وصبح واړه یو دی په او دو

چه دا نا له ناد انو سره حر ف کا

زر ناحقه درېه کاڼی ولې صر ف کا

په ښوره څه که کښې ګل کری بې رایه
په زندو ستر ګو ته ویوه نیسی بې ځایه

چه هر ګز په ګړه سمه نه پوهیږی
په ونګو د ګړو سمو څه پوهیږی

د هغو چه وران په جهل دخو لې خو ندوی
برابرو رته خواږه ترخه په خو ندوی

که شپېر ورته نظر نه کا غرور کا
څه به کم په داغرورد نمر د نور کا

دا ګوهر چه نهایت عالی مقدار شو
واقعی په دا سبب کم خریدار شو

جا هلان یې په سبب د نادارۍ
راوړه نه شی په خوله حرف د خریدارۍ

دد انش خزانه دار به یی اخلی
هر د هغه دی چه پېورکا هم یې اخلی

څو بالغ نه شی هلك په صحیح فکر
مات به نه کا د حمید د فکر بکر

که دانـا د زړه انصاف خو لې ته قرین کا
په ویل به د حمید صد آفرین کا

# پندډفرزند سعادتمند چه‌خاص وعام شبی تری بهرمند .

ای ددین دنیاپه‌کور کښې بلې شمعې

جلوه ګر اوسې مدام زما په‌جمعې

ددراز عمر له ونې بر خور دارشې

د ښادۍ ددا یرې قطب مدار شې

دم قدم دې سعادت مل ورفیق شه

څو چنده ترماء فلك په‌تاشفیق شه

ناخواسته‌دې خدای پوره‌لره مطلب

دز په‌خواست‌دې جلوګرمه‌شه‌په‌لب

بې له خدایه وهیچاته محتاج‌نه شې

ومخلوق وته سرکوزی په تاج‌مه‌شې

له جمله بدو بدانو محفوظ اوسې

په همه نېکو نېکانو محظوظ اوسې

دغفلت موتی‌دې وکاږه له غوږه

یو څو پنده درته وایم ویې نغوږه

اول و پېژنه خدای ته په یکی

د رسول په رسالت مه‌شه شکی

په اخلاص اوسه دوستدار دڅلور یارو
مه غوږ باسه وچې پوچې داغیارو
د م قد م ار ه له ځا نه سر ه مل
ر هنما ی د شـر یعت علم و عـمل
خنلې وخار، خوف وخطر لری دا لار
هر قدم په فهم ږده دروه بید ا ر
هر چه نه د ه محمد کړ ی لا لنه
مه کړه ته هغه بند ګی هغه پا لنه
پوه په فن و په فریب د نفس شیطان شې
د همه هوا هوس په سر سلطان شې (۱)
څو دی لاس رسی له هر ه ګناه تښته
خصو صاً د آز ا ر ا خستو له پښته
لکه خون، خمر، ز نا یا جواری شوه
کبر وظلم پس غیبت فتنه کاری شوه

(۱) له دی ځای نه ور وسته بیتو نه په (۱) نسخه کښې نشته. له (پ) نسخی څخه نقل شول.

هسې تښته له جمله بد و بدا نــو
لکه ګلهء، بزه چه تښتي له لېوانو
چېرې نه چه د دنيا په ننګ و شرم
نس شيطان در څخه مات کړی د دين درم
د دنيا ديوه دم خو ښـي د پـا ره
تمام عمر دې دين مه خوار وه يا ره
په ګناه ګنه ځان هسې شرمنده
لکه څوك كا سر و پای په ګل ګنده
چېرې نه چه د اميد په امانی
بې پروا شې د ګناه په پښيماني
که وښکی نه شې په هره ساه توبه
کړه دورځې په ګناه سبا توبه
که له کړې ګناه غواړې ويزاري
همېشه کړه استغفار توبه زاري
کړه بندګي خاصه دخدای دپاره دله
مه غوږ باسه په دا باب بله بد له
دریا عمل، عمل نه دی ګناه دی
ریا کار ترخپله خدایه روسياه دی
دریا بندګی د خدای نه ده دخلق ده
مشرکی لا ندی ددې اسلام تر دلق ده

هر عمل د خدای د پاره په اخلاص کړه
د مخلوق له پرستشه خاطر خلاص کړه
که دې یو وړه دا توښه ځان سره چا نه
د قیامت منزل به غوڅ کړی په آسانه
خو اه نا خو اه مه کوه زور زنهار زنهار
په دا پند کوه عمل لیل و نهار
که له دې لارې قدم دې تېر و بېر کړ
بیا به وایې په بلادې خپل سر ګېر کړ
بیا هاله که پښېماني کوې بې وخته
په هیڅ‌چا به دا آسانه نه شي سخته
که په غوږ کړې دا ګوهر زیبایی ستاده
او که نه وی د ناصح غاړه ادراده
ده وی کم علم معاش زده کړه لالنه
بیا یې و کړه په عمل سره پالنه
ډېره مینه په دنیا مه کړه هوښیار شه
په اخلاص له قناعته سره یار شه
چه د امینه د جمله بلا و سر ده
په خطر که هر پر هر لاره کو سر ده

په ادنا خوراك پوشاك باندې قانع شه
په زیاتی دنفس هواحرص مانع شه
که روزی دې صبروزهد دهمای شی
پادشاهی ته به دې سیوری ر هنمای شی
که دی پر هواحرص که ستر ګې وېی
په دولت کښی به دی چوی زهره سړی
د ښېتن له نعمتو نو ذاکر اوسه
په نعمت یې کفران مه کړه شاکر اوسه

کوه خرڅ دخپل حاصل په اندازه
چېری نه شی په اسراف په انداز ه
آه افسوس بویه په حال دهغه کس
چه یې خرڅ کېږی یوولس حاصل لس
مه خوره هسی مکلف طعام زنهار
چه له خرڅه یې سوخته نه شی نهار
موافق له خپله توانه زیست بسیط کړه
مه افراط کوه یك لخته مه تفریط کړ ه

که سا یه وی که غار مه یه ژمی اوری
تېری مه غرو ه پښه تر خپل خر شو ړی
هغه هسې نا ن دهی مه کوه پیار ې (۱)
چه دې فرض په غا ړه وی نفل گذاری

فراخی نه ده نه هو مره چه پری تنگ شې
د هوا هوس پر اور با ندې پتنگ شې
ا حمقا ن گڼی د عقل له خا مه
په یو ه نیکه نا مه سل بد نا مه
چه دې یو پلو لمن فقر ر ا کا ږی
بل پلو دې قرضداران پر توک و کا ږی
نه دی کم دا سخاوت تر لېو نتو به
دا غوړی وریجی بتر دی تر ا تو به
حاصل مه شه هغه ز ېب له درمر جا نه
چه دې خیرې کاغو ږو نه زما جا نه
سا ته گل د کور سړی تر قبض لا ندې
د خپل حکم هیبت پروت لره ور با ندې



۱ـ پیار بو هندی لغت د محبت په معنی.

# د نیرنګ عشق دلغاتو معنی

«آ»

آتش باز : (ف) اورشیندی

آزمودن : (ف) ازمیل

آشام : (ف) څښنه

آشفته : (ف) لیونی مین

آشفته : (ف) الغاو تلغاو

آغوش : (ف) غېږ

آګ : (ه) اور

آمنا وصدقنا : (ع) ایمان مو راوړی او باور پري لرو

آموز : (ف) زده کړه

آهنګ : (ف) تکل - اراده

«ا»

ابتلاء : (ع) اخته کیدل

اتوب : (پ) لېونی - مجازاً بې خونده.

احتساب : (ع) د لموږ حساب اخستل

احتشام : (ع) دبدبه

احد : (ع) یو

احرام : (ع) په حج کښې حلال حرام کېدل.

ادینه : د جمعې ورځ

ارادت : اخلاص - ګروهه

استصواب : (ع) صواب غوښتل

اسلوب : (ع) لار - روش

اشراق : (ع) د څاښت لمونځ

اصلا : (ع) هیڅکله

اضطراب : (ع) تشویش - تردد تیا

اطوار : (ع) جمع طور

اغیار : بېګانه - رقیب

افتراء : (ع) تور تړل

افګار : (ف) ژوبل

افګن : (ف) غورځول

اکرام : (ع) عزت درکول

اګر : (ه) په عود ولړی لی خلی

الام : (ع) دردونه

التماس : (ع) غوښتنه

| لغات | معنی |
|---|---|
| الوداع : | په مخه ښه |
| الوېزانه : | (پ) زوړ لنده - مجازاً غمګین |
| الیوم : | (ع) نن ورځ |
| امرد : | (ع) بې مخې |
| انا البرق : | (ع) زه برق یم |
| انا النار : | (ع) زه اور یم |
| انام : | (ع) خلك |
| انبساط : | (ع) غوړېدل - پراخېدل |
| انفعال : | (ع) خپه - پېکه کېدل |
| انکار : | (ع) ماتېدل |
| اواره : | (ف) سرګردان |
| اوتر : | (پ) پرېشان |
| اوج : | (ع) لوړه |
| او چې بوچې | (پ) خوشې خبرې |
| اهاله : | (ه) د ګرمۍ سخته موده |
| اهداد یا هداد : | (ع) سرزنش |
| ایاك والاسد : | (ع) ځان د زمري څخه وساته |
| ایذا : | (ع) ربړول |
| ایل : | (پ) تابع |

«ب»

| لغات | معنی |
|---|---|
| باخت : | (ف) بایلنه |
| باده : | (ف) شراب |
| باره وفات : | (ه) اوله خور ربیع الاول |
| بال : | (ف) وزر |
| بالین : | (ف) بالښت |
| بتر : | (پ) بالکل بد |
| بخری : | (پ) ذره |
| بدر منیر : | (ع) رڼا کوونکې سپوږمۍ |
| بډایي : | (پ) مړېښت - دولتمندي |
| بدله ګوی : | (ف) چټي ویونکی |
| برپای : | (ف) پرانګېخته - پورته |
| برایه : | (پ) تېره شپه |
| برندې سترګې : | (پ) جدا پې سترګې |
| بېوس : | (پ) تریو مخی |
| بېېدل : | (پ) د زړه آواز |
| بزم : | (ف) مجلس |
| بساط : | (ع) فرش |
| بسمل : | (ف) نیم جان |
| بشارت : | (ع) زیری |
| بصارت : | (ع) لیده |
| بګتیان : | (پ) سندرغاړي |
| بلوسېدلی : | (پ) مزاحم شوی |
| بلهارېدل : | (پ) قربان کېدل |

| لغات | | معنی |
|---|---|---|
| بنات النعش : | (ع) | بوډیه کټ |
| بناگوش : | (ف) | بښکی ـ بوڅکی دغوږ |
| بنجر : | (پ) | ریشی ـ گڼی ځانگکی |
| بندوق : | (ه) | چقمق ټوپك |
| بهرور : | (ف) | برخوردار |
| بیامرز : | (ف) | وبښه |
| بیاسته : | (پ) | رسی |
| بیچاونه : | (پ) | فرش ـ رخت خواب |
| بیدادی : | (ف) | تیری |

«پ»

| لغات | | معنی |
|---|---|---|
| پاـ پښ | | سزا |
| پارسا | (ف) | پرهېزگار |
| پازه : | (پ) | تأثیر |
| پاسبان : | (ف) | څارونکی پیره دار |
| پخساك | (پ) | رڼا ـ پلوشه |
| پرتو | (ف) | د ښمنی |
| پرخاش | (پ) | ملامت |
| پرورده | (ف) | پالل شوی |
| پریوش | (ف) | پری رو |
| پلوری | (پ) | خرڅوی |
| پلمه | (پ) | بهانه |
| پلیته | (پ) | باتی |
| پنهم | (ف) | پټ |
| پوشاندن | (ف) | پوښل |
| پوخت | (پ) | پخته کښې نښتی |
| پېغولیغولشو | (پ) | د حو یلی په صحن کښی جمع کېدل |
| پیچه | | تعقیب |
| پیر : | (پ) | دوره ـ دفعه |
| پیکر : | (ف) | اډانه |
| پیکان : | (ف) | توبری ـ شیټی |

«ت»

| لغات | | معنی |
|---|---|---|
| تاخت : | (ف) | حمله |
| تاو : | (پ) | گرمی ـ شتاب |
| تیری : | (ع) | بېزاری |
| ټت : | (پ) | خپ ـ رنگی |
| تحسین : | (ع) | ستاینه |
| ټخمخ : | (پ) | خجل |
| ترپله : | (پ) | څغاسته |
| ترپکی : | (پ) | خېزکی |
| ترسا : | (ف) | عیسوی |
| ټرمپ ټرمپ : | (ف) | پاره پاره |
| ټرو : | (پ) | نو |

| لغات | | معنی |
|---|---|---|
| تې انګه : | (پ) | لېتا ړه |
| تزویر : | (ع) | دروغ |
| تغمه : | (پ) | د وهلو نښه |
| تفحص : | (ع) | پلټل |
| تفریط : | (ع) | اعتدال نه کښېته تلل |
| تقریب : | (ع) | علت ــ نزدې کول |
| تقوی : | (ع) | پرهیزګاری |
| تکلم : | (ع) | خبرې کول |
| تګوپوی : | (ف) | حرکت |
| تل : | (پ) | قعر ــ بېخ |
| تم تری : | (پ) | پلکل ورك |
| تنبیه : | (ع) | خبرول ــ ټڼه |
| توبری : | (پ) | حصهٔ آهنی تیر |
| تور : | (پ) | تهمت |
| توسن : | (ف) | آس |
| تېکی : | (پ) | چې توں ــ کاڼی |

«ث»

| لغات | | معنی |
|---|---|---|
| ثریا : | (ع) | پېرونی ــ |

«ج»

| لغات | | معنی |
|---|---|---|
| چارګوتل : | (پ) | پورته ګرځېدل |
| جانفشان : | (ف) | سرټېر |
| جانګدازی : | (ف) | سوزنه |
| جاه : | (ف) | هر تبه |
| جبین : | (ع) | وچولی ــ ټنډه |
| جدر : | (پ) | بنیاد و تل، تباه |
| جرس : | (ف) | زنګ |
| جزایل : | | د بارو تو یو قسم ټوپك |
| جګی جګی : | (پ) | ځار ــ قربان |
| جلبل : | (پ) | سوی |
| جلوه : | (ع) | ښودنه |
| جلیا : | | سوی، سوخته |
| جلي : | (ع) | روښ |
| جوار : | (ف) | څنګ |
| جوس : | (پ) | د کور مخه انګړ |
| جودن : | (ف) | د آس ځغلول |
| جوانګ : | (پ) | د پیاټو |

مجموعه مخزن

| لغات | | معنی |
|---|---|---|
| جوهر: | (ع) | هر شی چه په خپل ذات قایم وی یعنی قابل د عرض |
| جهر: | (ع) | ښکاره کول |
| «چ» | | |
| چار: | (پ) | کار ـ علاج |
| چارسو | (پ) | څلور ـ وستل، چوک |
| چاه | (ع) | کوهی |
| چپراو وتار | (پ) | هسك و ټیټ کول د تار |
| چندن | (پ) | صندل |
| چورنګ | (پ) | سوری ـ زخمی |
| چوهاړی | (پ) | ناولی |
| چپه | (پ) | بر خلافی |
| «څ» | | |
| څری | (پ) | نشر ـ تیت |
| څلی | (پ) | منار |
| څرنګ | (پ) | پایمال |

| لغات | | معنی |
|---|---|---|
| «ځ» | | |
| ځپله | (پ) | یوله بله |
| ځله | (پ) | تلوسه |
| ځوږ | (پ) | غوغا |
| ځپل | (پ) | ټینګار |
| «ح» | | |
| حبطه: | (ع) | با بېزه ـ اپته |
| حجاب: | (ع) | پرده |
| حرم: | (ع) | انګړ ـ د کعبې خوا او شا |
| حک | (ع) | توږل ـ کېنل |
| «خ» | | |
| خاکستر: | (ف) | ایرې |
| خدنګ: | (ف) | غشی |
| خراج: | (ع) | باج |
| خرام: | (ف) | نخره ـ خوشالی |

| لغات | معنی | | |
|---|---|---|---|
| خر خوږی: | (پ) | زړي جامې | |
| خر خښو: | (پ) | فتنه | |
| خر من: | (ف) | درمند | |
| خر بز: | (پ) | سیخ، دوني لوی منډه | |
| خځله: | (پ) | خاشاك | |
| خضوع: | (ع) | عاجزي - کمینې | |
| خلوت: | (ع) | ګوښه | |
| خلی: | (پ) | خاشاك - خس | |
| خمر: | (ع) | شراب | |
| خور سندګی: | (ف) | خوښي | |
| خو ناب | (ف) | وینه | |

«د»

| لغات | | معنی |
|---|---|---|
| داب: | (ع) | دود |
| داد: | (ف) | عدل |
| دادو ګرفت: | (ف) | راکړه ورکړه |
| دادی | (ف) | عرض کوونکی |
| در | (ف) | ملغلره |
| در | (ف) | دروازه |
| درج | (ف) | قطی |
| دردانه | (ف) | ملغلره |
| درشهوار: | (ف) | ښه ملغلره |
| درغل | (پ) | ټګ، غلچکی |
| درګی | (پ) | درمې |
| درم | • | دین، مسلك |
| درمه | (پ) | نی |
| درنده | (ف) | څیروونکی |
| درنګ | (پ) | معطلی |
| دروزه | (پ) | دغمو او درېشو وچ ځانګړی |
| درود | (پ) | ښندری حیوان دعقیدی نښه |

| لغات | | معنی |
|---|---|---|
| درومه | (پ) | ځه |
| دروهه: | (پ) | فریب |
| دسته: | (ف) | غنچه |
| دښمنه: | (ف) | دښمن |
| دغه بازی: | (ف) | ټګی |
| دف: | (ع) | د اریا |
| دلق: | (ف) | ګودړی |
| دلنواز: | (ف) | زړه خوشالوونکی |
| دو | (ف) | ځغاسته |
| دوپرکاله: | (ف) | دوه خواـ په منځ نیم |
| دوشاله: | (پ) | ټکری |
| دوکمن: | (پ) | درد پدلی |
| دهر: | (ف) | زمانه |
| دیار: | (ف) | ملک، ښار |
| دیرینه: | (ف) | پخوانی |
| دپس | (ه) | وطن |

| لغات | | معنی |
|---|---|---|
| | « ډ » | |
| ډبر: | (پ) | تباه |
| ډمامه: | (پ) | نغاره |
| | « ذ » | |
| ذالنورین: | (ع) | دحضرت پیغمبر دوو لونو میړه |
| ذهب: | (ع) | سره زر |
| | « ر » | |
| ربابی: | (ف) | لوټنه |
| رخه: | (پ) | کینه |
| رسد: | (ف) | رسیدنه |
| رعنا: | (ع) | خیالی ګره |
| رم: | ف | تورـترهه |
| رمیده: | ف | تور پدلی |
| رند: | پ | بی پرواـزیرک |
| روټی: | هـ(پ) | ډوډی |

| لغات | معنی | | لغات | معنی |
|---|---|---|---|---|
| روسیاه : | (ف) تور مخی | | سپینی : | (پ) بلمې |
| رویدد : | (پ) اموخته | | سجود : | (ع) سجده |
| «ز» | | | سخ : | (پ) آفرین ـ ښه |
| زاغ : | (ف) کارغه | | سراغ : | (ف) پته او درك |
| زقوم : | (پ) ترخه ونه | | سروپ : | (پ) بلمکل |
| زلال : | (ع) رڼې اوبه | | سفته : | (ف) سوری ـ سراخ |
| زنهار : | (ف) خبر دار | | سفله : | (ف) پست |
| زویدا : | (پ) زغار | | سفیدی : | (ف) سپین والی |
| زهد : | (ف) پرهیز گاری | | سقر : | (ع) دوغس |
| زیبا : | (ف) ښایسته | | سکر : | (ع) نشه |
| زیرمه : | (پ) توښه | | سکښته : | (پ) قیچی کاوه |
| زیست : | (ف) ژوند | | سکه : | (پ) نو |
| «ږ» | | | سما : | (ع) آسمان |
| ږو | (پ) سوگند | | سماع : | (ع) اوریدل |
| «س» | | | سنیاسیان : | (ه) پرهیزگاران عبادت کوونکی |
| ساحل : | (ع) غاړه | | سنگدلان : | (ف) سخت زړی |
| ساهه : | (پ) تحمل | | سویه : | (پ) فتح |
| سبزه : | (ف) واښه | | سوده : | (پ) هغه شاروي چه په ښوسوده شوی اوسم نه شی تلاي |
| سبقت | (ع) وړاندې والی | | سهل : | (ع) آسان |
| سپارده : | (ف) سپارلی | | سهیده : | (پ) زغم او تحمل |
| سپړی : | (پ) دغلی یو ضرري خرنده | | | |
| سپیده : | (ف) سپیلنی | | | |
| سپیلنی : | (پ) سپند | | | |

| لغات | | معنی |
|---|---|---|
| سهیل : | (ع) | ستوری |
| سهی : | (پ) | صحیح |
| نیرنگی : | (ف) | مکر ، حیله |
| سیده : | (پ) | برابر |
| سیم : | (ف) | سپین زر |
| | «ش» | |
| شاذ : | (ع) | کمیاب |
| شاطر : | (ف) | د آس مخکښی خغلېدونکی |
| شاکر : | (ع) | شه منونکی |
| شاموت : | | نحوست بدقسمتی |
| شبخون : | (ف) | د شپې داړه |
| شخوند : | (پ) | ژامې وهل |
| شرر : | (ف) | سپرغی |
| شفق : | (ع) | سپېدې |
| شکن ، | (ف) | مات |
| شکوڼ : | (پ) | یو ځناور دی چه وجود یې غشی لری ، جیره |
| شکېب : | (ف) | صبر |
| شگفته : | (ف) | خوښ دلی |
| شگوفه : | (ف) | غوټی |
| شگون : | (ف) | نیک فال |

| لغات | | معنی |
|---|---|---|
| شنفت : | (ف) | اورېدنه |
| شواخون : | (پ) | تکلیف |
| شومل : | (پ) | ګوټ کول |
| شیدی : | (پ) | غشی |
| شهوه : | (ف) | لار ، نساز او نخره |
| | «ښ» | |
| ښکالو : | (پ) | غلی ، کلار آواز |
| ښکل : | (پ) | مچې کول |
| | «ص» | |
| صبحدم : | (ف) | سباوون |
| صحو : | (ع) | هوښیارتیا |
| صفاً صفا : | (ع) | بلکل پاك اوصاف |
| صفوت : | (ع) | غوره توب |
| صلوة : | (ع) | لمونځ |
| صم بکم : | (ع) | ګونګ او کوڼ |
| صیقل : | (ع) | روڼ |
| | «ض» | |
| ضابط : | (ع) | ساتندوی |
| ضرغام : | (ع) | زمری |

| لغات | | معنی |
|---|---|---|
| ضلالت : | (ع) | بې لارې گمراهی |
| ضم : | (ع) | نښلول |
| ضمیر : | (ع) | زړه |
| | «ط» | |
| طرب : | (ع) | ښادی |
| طفل : | (ع) | هلك |
| طلوع : | (ع) | لمر ځرك |
| طمطراق : | (ف) | دباب ـ ظاهری نمایش |
| طوق : | (ع) | اوږیه |
| طیران : | (ع) | الوتنه |
| طیور : | (ع) | مرغان |
| | «ع» | |
| عاصی : | (ع) | گناهگار |
| عذرأ : | (ع) | په عربو کښې یوه مشهوره معشوقه تېره شوې ده . |
| عوض : | (ع) | مقابل د جوهر |
| عشاق : | (ع) | مینان |
| عصمت : | (ع) | سپېڅلتوب |

| لغات | | معنی |
|---|---|---|
| عنان : | (ع) | واگی |
| عنوان : | (ع) | رقم ـ سرخط |
| عیان : | (ع) | څرگند |
| | «غ» | |
| غبغب : | (ف) | د زنې لاندې حصه، د زنی د سر کوتی |
| غزال : | (ع) | آهو |
| غش : | (ف) | بېهوشی |
| غلنی : | (پ) | غلا چن |
| غمزه : | (ع) | نازو کرشمه |
| غندل : | (پ) | بدویل |
| غوبل : | (پ) | جغل |
| غوږ بدلی : | (پ) | خبر شوی |
| غونډی : | (پ) | ډول ـ، پېره او مسئولیت |
| غولی : | (پ) | میدان، حویلی |
| غونی : | (پ) | پوست بدن |
| | «ف» | |
| فاخر : | (ع) | ویاړونکی |
| فتراك : | (ف) | کنجوغه |
| فتقم : | (ع) | پورته کېږه |
| فتوت : | (ع) | مېړانه |
| فتوره | (ع) | مړاوی |

| لغات | | معنی |
|---|---|---|
| فج : | (ع) | د دوه غرونو په منځ کښې لار |
| فرجام : | (ف) | وروسته |
| فرخنده : | (ف) | نېك مرغه |
| فرق : | (ف) | سر |
| فروختن : | (ف) | خرڅول |
| فلك : | (ع) | آسمان |
| فم : | (ع) | خوله |
| فی النار : | (ع) | په اور کښې |

«ق»

| لغات | | معنی |
|---|---|---|
| قابوچی : | | دربان، منتظر فرصت ته کتونکی |
| قامت : | (ع) | جګوالی |
| قبح : | (ع) | بدی |
| قدسیان : | (ف) | پرښتې |
| قربت : | (ع) | نږدې والی |
| قرین : | (ع) | نژدې |
| قضا : | (ع) | حکم |
| قطب : | (ع) | مدار |
| قمر : | (ع) | قل-بهغ |
| ققنس : | (ع) | هغه مرغه چه له آوازه یی موسیقی جوړیږی |
| قلقل : | (ع) | د اوبو توېدلو آواز |
| قمری : | (ع) | کوتره |
| قوس قزح : | (ف) | زېړه زرغونه ګاسه-د بوډۍ ټال |
| قوصر : | (ع) | کرخت او سپړو وهلی |
| قیام : | (ع) | درېدل |

«ک»

| لغات | | معنی |
|---|---|---|
| کاخ : | (ف) | ماڼۍ |
| کام : | (ف) | مقصد |
| کامران : | (ف) | بریالی |
| کامرانی : | (ف) | بریالیتوب |
| کانې : | (پ) | حادثې |
| کانۍ : | (پ) | کږۍ |
| کاوش : | (ف) | هڅه |
| کټ کوټ : | (پ) | میده میده |
| کثافت : | (ع) | چټلي، ناپاکي |
| کرتوت : | (پ) | کردار |
| کروړه : | (پ) | قمچینه |
| کریکه : | (پ) | چغه |

| لغات | | معنی |
|---|---|---|
| کہول : | (پ) | بد ګڼل |
| کسکر : | (پ) | میده کاڼی ، خس |
| کسیا : | (پ) | میده ریزه |
| کلاحاشا : | (ع) | قطعاً |
| کم و کاست : | (ف) | لږو الی |
| کنجا : | (ه) | په پنجاب کښې |
| | | دمو لانا غنیمت ځای دی |
| کوب : | (پ) | خمیده ګی |
| کوتن : | (پ) | دسپه بچی |
| کوڅلی : | (پ) | کو بیده |
| کورنش : | (ه) | احترام ، تعظیم |
| کورنګ : | (پ) | سور بخن اس |
| کوشان : | (ف) | کوښښ کوونکی |
| کولنی : | (پ) | ړندی ، دسپی |
| | | دغا ړدی لرګی |
| کوندی : | (پ) | دلرګی کاسه |

| لغات | | معنی |
|---|---|---|
| کهیدل | (پ) | ضعیف کیدل ، زهیر یدل |
| کیو تلی | (پ) | مصروف |
| کیل | (پ) | خط ، قلبه |

**«ګ»**

| لغات | | معنی |
|---|---|---|
| ګانده | (پ) | سبا |
| ګاو | (ف) | ډنګر ، غوبی |
| ګایل | (پ) | زخمی ـ ټپی |
| ګبر | (ف) | آتش پرست |
| ګداز | (ف) | ویلی |
| ګرت ، ګودت | (پ) | دګوتو منځ |
| ګریز | (ف) | ځیښته ، تښته |
| ګستر | (ف) | خپور ، غوړیدلی |
| ګفت و شنود | (ف) | خبری اتری |
| ګلعذار | (ف) | معشوق خوب روی |
| ګلګون | (ف) | ګل رنګی |
| ګونګوسی | (پ) | آوازهٔ خفیه |

| لغات | | معنی |
|---|---|---|
| گنهه: | (پ) | گمان کوه |
| گوټ | (پ) | غړپ - جرعه |
| گوره | (پ) | انبوه |
| گوزن | (ف) | ځنګلی غویی |
| گوښه | (پ) | په څنګک |
| گونا گون | (ف) | رنګارنګی |
| گون | (ف) | نوع |
| گوهر | (ف) | قیمتی تیږه |
| گیت | (ه) | سندره |
| گوی | (ف) | پندوس |
| گیره | | محاصره |
| گیرپیر | (پ) | گرفتار |
| گیسو | (ف) | څڼی - کوڅی |

«ل»

لا احب الآفلین (ع) زه پریوتونکی نه خوښوم

لاحول ولا قوة (ع) له گناه څخه ژغورل او عبادت په توفیق دالهی دی.

| لغات | | معنی |
|---|---|---|
| لاړغه | (پ) | څنډه، تال |
| لالنه | (پ) | ای لالیه! |
| لاونعم | (ع) | نه او هو |
| لب | (ف) | شونډه. |
| لبیک | (ع) | ښه راغلی |
| لپه | (پ) | پیمانهٔ دودست |
| لړی | (پ) | ناکامی |
| لړی تړی | (پ) | شور و غوغا |
| لمعان | (ع) | ځلیدل |
| لن ترانی | (ع) | ما نه شی لیدلای |
| لوټ پوټ | (پ) | تاراج |
| لوټیری | (پ) | تاراج کننده |
| لوښی | (پ) | ظرف |
| لولپه | (پ) | سڅی، سوخته |
| لومه | (پ) | دام |
| لؤلؤ | (ع) | مرغلره |

| لغات | | معنی |
|---|---|---|
| لوول: | | ادا کول |
| لهر: | (ه) | موج ، څپه |
| لیل: | (ع) | شپه |
| لیچن: | (پ) | چشم درد |
| لیلة القدر: | (ع) | شبقدر |

«م»

| لغات | | معنی |
|---|---|---|
| ماسوا: | (ع) | غیر له ده |
| ماضی: | (ع) | تیر شوی |
| متنفر: | (ع) | زړه توری، کرکجن |
| متنبه | (ع) | آگاه |
| مټ: | (پ) | منتها قدرت |
| مجال: | (ع) | وخت و طاقت |
| مجمر: | (ع) | منقل |
| محتمل: | (ع) | کیدونکی |
| محرم: | (ع) | د حج احرام تړونکی |
| محتسب: | (ع) | د لمونځ حساب اخیستونکی |
| مختصر: | (ع) | کوتاه |

| لغات | | معنی |
|---|---|---|
| مدار: | (ع) | جای دور و گردش |
| مدهوش: | (ع) | گنگس، بیهوش |
| مرآت: | (ع) | آینه |
| مرصع: | (ع) | جوړ او په مرغلرو ښکلی |
| مرضی: | (ع) | خوښی او رضا |
| مرکب: | (ع) | خر |
| مستمند: | (ف) | محتاج |
| مستور: | (ع) | پټ |
| مسلط: | (ع) | غالب |
| مسلم: | (ع) | منلی |
| مشتاق: | (ع) | ارزومند |
| مشتمل: | (ع) | گرداگرد فراگیرنده |

| لغات | | معنی |
|---|---|---|
| مشعبد : | (ع) | شعبده باز |
| مجهود : | (پ) | کوښښ |
| مصدق : | (ع) | دلیل تصدیق کننده |
| مصلی : | (ع) | لمونځ گزار |
| مضطرب : | (ع) | پریشان |
| مطلع البدر : | (ع) | د سپوږمی دختو ځای |
| مطرب : | (ع) | سازنده |
| مظهر : | (ع) | ځرگندیدو ځای |
| معاین : | (ع) | ښکاره |
| معتاد : | (ع) | عادت شوی روږدی |
| معصیت : | (ع) | گناه |
| معه : | (ع) | سره |
| مغان : | (ف) | اور لمانځونی |
| مغزی : | (پ) | ځت |
| مفتون : | (ع) | لېوال |
| مقراض : | (ع) | بیاتی |
| مکوټ : | (پ) | سوخته، سوی |
| ملتمس : | (ع) | غوښتونکی |
| ملمع : | | دزرو په اوبو ښایسته |
| من الجنة والناس : | (ع) | له جن او بنی آدم څخه |

| لغات | | معنی |
|---|---|---|
| مزری : | (پ) | زمری |
| منشور : | (ع) | فرمان |
| منظر : | (ع) | بڼه |
| منوعن : | (ع) | ډو کیفیت |
| مواس : | (پ) | نگاهبان |
| موتی : | (ه) | ملغلره |
| موخه : | (پ) | هدف |
| مؤذن : | (ع) | آذان کوونکی |
| مورگه : | (پ) | خنده |
| موی : | (ف) | ویښته |
| مهد : | (ع) | زانگو |
| مهر : | (ف) | محبت |
| مهجور : | (ع) | جدا شوی |
| مهوش : | (ف) | ښکلی |
| مهین : | (پ) | نری- نرم |
| میزوب : | (پ) | دیوانه حال |
| میږل : | (پ) | متیازی کول |
| مېښ مېښ : | (پ) | نخنېدنه |

«ن»

| لغات | | معنی |
|---|---|---|
| ناخوالی : | (پ) | نامناسب |
| نار : | (ع) | اور |
| نالان : | (ف) | ژړېدونکی |
| نغه : | (پ) | پوزوان |
| نغلی : | (پ) | زخمی، غم زده |

| لغات | | معنی |
|---|---|---|
| نچوړ : | (پ) | نغښتنه، خلاصه |
| نخچیر : | (ف) | فرغه، شکار |
| ندامت : | (ع) | پښېماني |
| نصر من الله : | (ع) | بري د خداى له خوا |
| نعوذ بالله منها : | (پ) | له دې څخه د خداى په مرسته کمک غواړم |
| نغوتې : | (ع) | اشارې ـ تحریك |
| نغوړه : | (پ) | اوره |
| نګار : | (ف) | معشوقه |
| نګهبان : | (ف) | ساتونکى |
| نګهت : | (ف) | ښه بوى |
| نماځل : | (پ) | پالل، درنول |
| نمد : | (ف) | لمځى |
| نمړى : | (پ) | لباس |
| نواز : | (ف) | پالونکى |
| نونکى : | (پ) | چیچک |
| نهار : | (ع) | ورځ |
| نیاز : | (ف) | احتیاج |
| نیسان : | (ف) | پسرلى |
| نیښه : | (پ) | بریان |
| وارسته : | (ف) | آزاد |
| واصف : | (ع) | ستایونکى |
| وامق : | (ع) | د یو عاشق نوم دى |

| لغات | | معنی |
|---|---|---|
| وت : | (پ) | ستو ـ سپورى |
| وتر : | (پ) | نم |
| وټ : | (پ) | نقص ـ شك |
| ورژلى : | (پ) | ځواني مرګ |
| ورهول : | (پ) | خلاصول |
| وهیدلى : | (پ) | خوشال او تازه |
| وسکه : | (پ) | نو |
| وصال | (ع) | ملاقات |
| وللى | (پ) | بریولى ـ بریمڅلى |
| ویرژلى : | (پ) | ویرجن |
| ویسا : | (پ) | اعتماد، باور |

«ه»

| لغات | | معنی |
|---|---|---|
| ویلاړ | | تصمیم، عزم |
| هادې هودې | (پ) | المدودې، شور و غوغا |
| هجرى | (پ) | نرښځى |
| هدهد | (ع) | ملا چرګك، |

«ى»

| لغات | | معنی |
|---|---|---|
| یبل | (پ) | لوڅې پښې |
| یشپه | (پ) | جوشپه . |
| یکامانه | (ف) | سر تا سر، له یوې مخې |
| یکتازه | (ف) | یه یو . زغاسته، |




# *Hamid's*

## *Nairang-i-Eshq*

## *(The Ecstasy of Love)*

*Pushto Academy*

*1970*

Government Printing Press

دولتی مطبعه